د ۱۳۵۳ لمریز کال
پنځمه ګڼه




# اطلاعات او کلتور

د کندهار میخانیکي ښوونځی چې په ۱۳۵۰ کال کې لیسې ته لوړه شوه، تیر کال یې له ۱۲ ټولګي څخه خپله لومړۍ دوره ۷۰ تنه فارغان د ټولنې خدمت ته وړاندې کړل ددې موضوع مفصل راپور د طلوع افغان د زمري د میاشتې په ۲۷۹ ګڼه کې خپور شوی دی.

# پەدی گنه کی




مسئول مدیر: کریم (طالب)
اداره: د شهیدانو واټ
د ټیلفون نمبر: ۲۸۸۴

د ۱۳۵۳ کال د زمري میاشت

# بلخي امیر خسرو

د خوښۍ ځای دی چې د اطلاعاتو او کلتور وزارت د افغانستان د نومیالیو شخصیتونو په لړ کې د اغېزمن د هیواد د یوه ادبي شخصیت یعنې بلخي امیر خسرو ۶۵۰ کالیزه د حوت د ۲۰ نیټې څخه تر ۲۲ نیټې پورې لمانځي او په خپل دغه اقدام د هیواد د دغه شخصیت معنوي حیات ته ابدیت ور په برخه کوي.

بلې. دا د برم هغه ملک د علم او فرهنګ یو لرغونی زانګو ده چې په هر عصر او زمان، په هره پېړۍ او زدې کې یې داسې پیاوړي شخصیتونه تولید ته وړاندې کړي دي چې نه یوازې په افغانستان کې منل شوي دي بلکه په جهاني او بین المللي سویه منل شوي دي.

لکه «ابوریحان البیروني، بلخي ابن سینا، امام فخر رازي، سید جمال الدین افغان غوندې حکیمان، د ابو معشر بلخي، ابوحاتم اسفزاري غوندې ریاضي پوهان د خوشحال خان، رحمن بابا، بلخي امیر خسرو، جامي خواجه عبدالله انصاري، حکیم سنايي، مولانا جلال الدین بلخي، پیر روښان غوندې عارفان، د کمال الدین بهزاد میر علي هروي او سلطان علي هروي په شان هنرمندان» چې هر یو یې د یوه روښانه ستوري په څېر افغاني تاریخ ته ځلا وربخښلې ده.

یو د هغو کسانو څخه چې همدا اوس د هغه د ۶۵۰ کالیزې د لمانځلو اقدام شوی دی بلخي امیر خسرو دی.

د ده اصلي ټاټوبی د کندوز د لاچین قبیله ده او پلار یې امیر سیف الدین محمود د دغې قبیلې مشر و. چې د چنګیزي استعمار په وخت کې هند ته ولاړ او د سلطان محمد تغلق شاه په دربار کې د مقرب مقام څښتن شو.

د امیر سیف الدین د دروزامنو څخه یو امیر خسرو دی چې پلار یې په خپل ژوند کې ښوونځي ته داخل کړ او تر شل کلنۍ پورې یې د هغه عصر ټول مروجه علوم پای ته ورسول.

امیر خسرو علاوه پر شعر او شاعري لوی متصوف عارف او پر علاوه د هیواد د تکړه اهنګسازانو څخه شمېرل کېږي.

دا د هیواد نامتو شخصیت پر ژبو شعر تصانیف هم لري چې تقریباً ۹۹ ټوکه جوړ شوي دي او د اشعارو مجموعه یې پنځوس زرو بیتو ته رسیږي.

د افغاني نومیالیو لمانځنه کې د یوې خوا د دغه شخصیتونه د هېرېدو د مرګه ژغوري او د بلې خوا افغاني نسل ته دا درس ورکوي چې دوی هم باید د دغه شان ابدي افتخار وګټي.

دا د جمهوري دولت د کلتوري پالیسي یو جز دی چې د هیواد د نامتو شخصیتو لمانځنه وکي او په دې توګه د هغو د علمي او ادبي طرز تفکر څخه د هیواد بچیان مستفید او مستفیض کړي او څرګنده ده چې د هر شخصیت څېړنه تحقیق او تتبع ایجابوي او دا په خپل ذات کې یو ستر علمي پرنسیپ بلل کېږي.

ځکه نو موږ د جمهوري دولت د دغه نیکمرغه اقدام تود هرکلی کوو. په دې اقدام سره که د یوه طرفه د هیواد معنوي پانګه د نیستۍ څخه ژغورل کېږي نو د بلې خوا د یوه نوي افغانستان د علم او فرهنګ هنر او ادب بنسټ هم هغه لرغوني پانګه تشکیلوي چې تر اوسه پورې را کډه پرته وه.

د افغاني مشاهیرو لمانځنه هر افغان ته د امید ورښښي چې ګران هیواد به نوځل بیا داسې شخصیتونو څښتن شي چې نړۍ به فخر په کوي. ځکه نو په دې لاره کې د اطلاعاتو او کلتور د وزارت زیات بریالیتوب د لوی خدای د دربار څخه غواړو.

# انقلابي حرکت زموږ وروستۍ فيصله وه

## د دولت د رئيس او صدراعظم ښاغلي محمد داود د هغې تاريخي وينا متن چې د چنګاښ په ۲۵ ئي د راډيو افغانستان څخه خپره کړل

ګرانو وطنوالو:

د انقلاب د بري او زموږ د ملي قيام څخه پوره يو کال تېرېږي

د دغې شاندارې او له خوښۍ نه ډکې اماينې تاسو د انقلاب په اداره ميهن او وطن پالو ملګرو ته، تاسو

د افغانستان ميهن فدا کاره اردو ته او تاسو ګرانو خويندو او وروڼو ته په هر ځای کې چې

ياست د زړه له کومې مبارکي وايم.

زموږ وطن او ټولنه د ډېرې

مودې راهيسې يو نوي ژوند ته اميدواره وه، ډېرې نيمګړتياوې زموږ د ودې او زموږ د تحرک او

تکامل مخنيوی کېده. خو زموږ د ټولنې فساد او د هغه څخه پيدا شوي خطرونه خبرداري ځای

ته ورسول چې وطن پال ارزښتونو نور تامل جايز ونه ګاڼه په دا انقياد

او د کار لوري بدلې هڅې کړې وې ئي د افغانستان د وطن دوسته ولس په پوره ميړانه او ملاتړ مات کړل او په همدې شپه د لوی

خدای (ج) په مهرباني بري ته ورسېدل.

هو! د سرطان ۲۶ شپه هغه شپه وه چې

تياره او له وېرو څخه ډک سهار او پای ئی د و چا له لمر څرک د هغه سره درلود له اميد څخه ډک او د خطره څخه ډک. زياتره

چارياڼ په دغه شپه چې نيمايي ئي تېره شوې وه په درانه خوب ويده او يو شمېر

لږ بېکاره کسان چې دوی ته په اتنی شپه کې

ژوند پيل کېده په خپل عيش او نوش کې وه ځينې نور خلک هم په دغه شپه په دغه چار

کې وه چې کلونه ئي د ولس او هيواد د نېکمرغۍ په اميد تېر کړل او هر څه چې د دوی د فکر او عمل له ممکن وه د دغې مقدسې او پاکې هيلې ته د رسېدو په مقصد ئي ونه سپمول.

د ټولو هغو نيمګړتياوو، فساد او

د اصلاح په غرض چې ټول هيواد او د دولت

دستګاه ئي په تېره بيا په وروستيو کلونو کې نيولي وه په مستقيم او غير مستقيم ډول کوښښ وکړ خو

افسوس چې د هغو ټولو هڅو نه يوازې فايده ونه کړه بلکه په څرګند ډول ئي احساس کړه چې د هيواد

ماتې او ړنګېدو ته په ډېره بېړه د لوېېدو کندې او ژرتيا پسې نږدې کېږي او داسې ورځ به را ورسېږي

چې د هغه د نجات چاره د ټولو د پاره مشکله بلکه ناممکن شي. د هغو کسانو هغو ترخو حقايقو او

درک په رڼا کې چې د خپل هېواد د لوړتيا د پاره ئي په خپل زړه کې درلود د ټولو ستونزو او

هغو مشکلاتو سره چې موجود وه بايد خپل وطن او ولس ته يا او اصلاح د پاره چاره ولټوي خو

څرنګه او څه ډول؟

هو! هغه لار چې د هغې مقصد

او هدف د وطن د سلامتیا او نیکمرغۍ او د افغانستان ټول ملت ته د خدمت نه پرته بل څه نه وي او تر دې وروسته د هر ډول شخصي عقدو او غوټو د انساني کمزورتیاو او د غچ

اخیستلو او خپل سرۍ او نورو د حس نه خلاص وي او د دې خبرې په څېړلو ددوی ستوانزې زیاتولی. دقت،

سنجش او زیاته حوصله ئې ایجابوله.

په هر صورت د یوه کال څخه زیات دد غې موضوع

په شاو خوا کې د هیڅو ملګرو تر منځ خبرې او بحثونه وسول. بېل بېل پلانونه طرح سول او هر ډول

امکانات وسنجول سول. د دغې مو دې په اوږدو کې لاهم په دغه امید چې بیا ئې کې هغه

خطرونه چې د هر لحاظه ئې د وطن احاطه او د خطر ټول زنګونه ئې ډېر وهلي، شاید ژده او مغرور ه

دستګاه د غفلت د هغه خوبه ویښه او ملتفته کې، خو ورو ورو دغه کمزوری امید لا نوی کمزوری

کېدی تر څو چې په وروستیو میاشتو کې په پوره نا امیدۍ بدل شو.

درژیم ملي ضد فساد وروسته

خپل لوړ حد ته ورسېده او نور هیڅ پروطن پال او ګړی نه سو کولای د دغو ټولو فجایعو ننداره

وکي او آرام کښېني.

فیصله داسې وسوه چې د انقلابي حرکت څخه پرته بله لاره نه ده پاته

او باید حرکت وکړو او دا زموږ وروستۍ فیصله وه.

په همدې شپه د وطن هغه مینه نی زامن بی له دې چې حتی د دوی کورنۍ، ښځې او زامن احساس وکړای سي په زړه کې د کورنۍ او هر څه سره چې په ژوند کې ور ته ګران وه د خپل هیواد او ولس د خدمت

او لوړتیا په لار کې پټه خوله خدای په امانی کړې وه. ځکه په موږ کې هیڅ یوه نه سو کولای ضمانت وکي او یو مې سي چې سبا به

بشپړه ددوی د کورنۍ او د دې د وطن سرنوشت څه وي؟

ګرانو دوستانو:

اوس په نیمه شپه کې یو اجازه راکړی چې د خپل تېر کال د سرطان د ۲٦ نیټې د وېښا یوه برخه یو ځل بیا تکرار کړم:

دا مقدسه هیله وه چې زه ئې مجبور کړم لس کاله د مخه ما او زما ملګرو خپل وروستي پیشنهاد د شاه حضور ته

وړاندې او د ملت د خیر او نیکمرغۍ د پاره مو هغه د تطبیق هیله وکړه. هغه مقدسه هیله ولې د مملکت د ګډوډۍ سبب شوه

او ولې هغه ملګري د اصل مقصد څخه را وچتل او غلطه لار ئې تعقیب کړه؟ داستان ډېر اوږد دی چې تفصیل ئې په

دغه لنډ وخت کې ګنجایش نه لري او په مساعد وخت کې به هغه د ګرانو وطنوالو د خبر تیا د پاره ور د سول سي.

اوس په دې نیمه شپه کې یو د حرکت د امر د پاره لا هم یو ساعت پاتې دی.

سره د دې دغه له هیجانه ډک یو ساعت

په هیڅ صورت د دغه څو کلن اوږده داستان د پاره کفایت نه کوي بیا هم بده نه ده څو کاله پر شا ولاړ سو او د هغو یو شمیر

لیکونو څخه چې دا اوږدو کلو د امیسي می وخت په وخت د شاه حضور ته وړاندې کړي دي خو وروستي لیکونه

چې امکان لري ښایي زموږ د زیاتو خلکو سره پېژو ي، ګرانو وطنوالو

ته بري خبر کړم.

د ۱۹٤ کال د چنګاښ د لومړی نیټی ایکڅ له اقابو وروسته هغه

څه چې ان ئې ستاسو حضور ته عرض کوم تصور کوم د افغان ولس په راتلونکي سرنوشت کې د ومره

مهم او حیاتي او ستاسې د سلطنت په دوره کې د ومره ستر او تاریخي اقدام دی چې کیدای سي د هغه په

شاو خوا کې یو کتاب ولیکل شي او یو عالم دلیلونه او توضیحات په عرض ورسوني خو یو هیله م چې

او ږدې عریضې د لوستونکي او هم هغه چاد پاره چې لیکي ئې کله نا کله ستړي کوونکي وي خونه

خوا دم چې زما عریضه اوږده وي کوښښ کوم په ډېره لنډه توګه هغه څه چې بشپړه عقیده مې چې دا تل

زما عقیده وه او وي به د افغانستان د اولس خیر او نیکمرغي او ستاسو د سلطنت ستر او تاریخي اقدام

بولم ستاسو حضور ته عرض کوم.

د دې خبرې موجبات او دلایلو

ته چې ولې په دغه هیواد کې اجتماعي تحول منځ ته راسي، ضرورت نه سته چې په دې ځای کې څرګند کړم

ځکه چې د هغوی په شاوخوا کې تل مې فیدلي یو او ګمان کوم په دغه برخه کې زما افکار او نظریات ستاسو حضور ته پوره

# انقلابي حرکت زموږ وروستۍ فیصله وه

څرګند او روښانه معلومه دی. تصور کوم چې د حکومت د خوا د دغه شان یوې مفکورې د څرګندولو وخت هغه وخت و چې د دوهم اقتصادي پلان شورا ته وړاندې کېده او د هغه په ترڅ کې د هغه اجتماعي تحول اساسي ټکي چې د یوه پلان په اساس د دولت په نظر کې دي د شورا وکیلانو او د ولس وړاندې شوي دي. څرنګه چې د یوې خوا د کابینې د غړو ملګرو په طرز تفکر باندې خبر نه وم او د بلې خوا د اعلیحضرت حضور په کابل کې تشریف نه درلود نو هم دا وېره چې هغه وخت تېر شو. خو هر ګام چې د اولس د خیر او نېکمرغۍ د پاره اخیستل کېږي په هر وخت او زمان کې چې وي به یقین سره اغېزمن او

ګټور دی په دې شرط چې ډېر ناوخته شوی نه وي. زما په عقیده د هېواد وضعیت او د عصر او زمانې جریانات

د غه شان تحول غواړي او که چېرې ستاسي حضور یو دغه شان تحول د مملکت په حال ښه او ګټور بولی

چې زه د هر نقطه نظره هغه لازم بولم نو تصور کوم د دغه شان یوې مفکورې عملي کول که چېرې

په وخت او یوه مساعده فضا کې وشي د هغو اغېزه به لا زیاته او د

هغې انتخاب به ډېر ښه وي همدا وجه ده چې زه بیا هم همدغه وخت

د دغه کار د پیل د پاره ډېر وخت او

پرځای بولم. شک نشته چې د اولسي پنځه کلن پلان تطبیق د یوه پلوه د زیاترو طبقو په ژوند بې اغېزې نه و او د بلې خوا نهضت چې یو مهم اجتماعي ګام و د منورو او عوامو طبقو د خوا ورته په درنه سترګه وکتل شو او سره د دې یې هم د امید او خوشبینۍ یوه فضا پیدا کړه. خو باید ووایو چې اقتصادي پرمختیا حتماً د ځان سره نوي اجتماعي افکار او ذهنیتونه راوړي او که چېرې د ژوند اله په دغه معنوي برخه کې چې زما په عقیده زیاته مهمه او بې سکون او نه د وامه او زیات سنجش نه کېږي او د اقتصادي پلان سره یوځای عملي مطلوب هدف ته د رسېدو په مقصد یو ولسي تدارک او نیونه په غرض د اجتماعي تحول پلان طرح او عملي کېږي.

نه، داسې وضع به راووسېږي چې انډول به یې ګډوډ کړي او ناڅاپه به هېواد د داسې ستونزو سره مخامخ شي

چې امکان سته د هغو حل دومره آسانه او ساده نه وي او د افغانستان په ملي ګټه تمام نه شي.

خلک په تېره بیا منوره طبقه د اجتماعي نظره د تحول هیله‌منه او هغه ته سترګې په لاره ده. په ټوله ټوله افکار

عقاید او ذهنیتونه سته، یو دې لاسونه د خپلو سیاسي مقصدونو د پاره په فعالیت بوخت دي د حکومت دغه طرز خاکو د

بیا په تېره د منورو طبقو د مره له خوښېږي او ستړي کوونکی دی.

د اعلیحضرت حضور او غړو نورو

د پاره که چېرې لا هم دغه طرز د زغم وړ دی زما د پاره چې کورنۍ ته هم منسوب یم څرنګه چې د هغه په عاقبت د هېواد کې او سلطنت ناکامي وینم رښتیا عرض کوم

چې نور دي وروسته د دوام وړ نه دي. په مستقیم او غیر مستقیم ډول کورنۍ ته منسوب کسان (ځکه د کورنۍ او د هغې مربوطو کسانو حدود تش دې اندازې ته رسېدلي دي چې سخته ده چې هغې ته حدود قایل شم) کار لري که بیکاره، واده دي که لوی د ځان د پاره په امتیازو قایل دي او د غه شی خپل مثبت او طبیعي حق بولي.

د هېواد په وړاندې هر څه چې وي د هغوی په نظر د څو بې معنی کلمو څخه زیات نور ارزښت نه لري او د اصي نور او نور...

نو باید د ټولو سره د قانون او مقرراتو له مخې سلوک وشي چې حتماً عکس العمل نه پیدا کوي او یا دا چې زغم وکړه شي او سترګې

پټې کړه شي چې په نتیجه د بې عدالتۍ او بې انضباطۍ سبب شوی او کېدونکی دی. پوښتنه او باز

خواست هغه وخت ممکن او اغېزمن کېدای شي چې په هغه کې کوم امتیاز نه وي. که چېرې امتیاز

موجود وي د قانون او عدالت حقیقي مفهوم له منځه ځي او که چېرې د غه باز خواست یواځې څېزه اجرا کېږي

نتیجه به د حکومت او سلطنت په مقابل کې د ژبت زیات عکس العمل او بدبینۍ د پیدا کېدو پر ته

نور څه نه وي.

اعلیحضرتا!

د افغانستان د تېر تاریخ پاڼې ډېر ښه درس دي چې کېدای

«٤ مخ»

شي د هغه څخه عبرت واخیستل شي
تېرشوي تاریخ هم هغه څه چې په خپله موږ ژوندکې ولیدل او تجربه موو کړه موږ ته یې څرګنده کړه چې جاه طلبي، رقابتونه او د افرادو شخصیات او خپل سري څه په سلطنتي کورنیو کې یاد حکومت په دستګاه کې، څه د هېواد د بانفوذه طبقاتو ترمنځ پخپله دهغوی د ناکامۍ او بربادۍ څخه پرته او د هېواد د مادي او معنوي تاوان په غیر، کومه نتیجه نه درلوده او نه یې لري.

خدای دې نه کړي چې مقاسي اعلیحضرت د سلطنت په دغه عصر او دولت کې هغه ترخې پېښې بیا تکرار شي لکه چې په وار وار مې مقاسو حضور ته عرض کړې دي دغه له کومې یو ځل بیا عرض کوم چې د مملکت دغه اداري طرز او دا کورنۍ فضا د هغه ذهنیت سره چې هغوی روزل شوي دي وروسته تر دې په هر تعبیر سره چې ورته ورکول شي څه د وظیفې د مسئولیت د نظره او څه د شخصي عقیدې له نظره زما د زغم وړ نه دي. له دې امله مقاسي اعلیحضرت حضور ته زما نظریه او پیشنهاد په دې ډول دی:

## ۱-الترناتیف

دا چې د افغانستان د ملت د هېواد د راتلونکي د پاره اداري کوم شکل او طرز ګټور او مناسب بولي د افغانستان ملت د عمومي آراؤ ازادۍ ته یې د یوه ریفرنډم د خوا دې رجوع شي. زموږ د خلکو د اوسني سویې له مخې به د دغه ډول ریفرنډم اخیستلو د تطبیق او عملي کولو درجه او د فهم درجه څه وي؟ په دې مجهوله او په څرګنده ډول غیر عملي بریښي. د بلې خوا څرنګه چې په دغه ډول ریفرنډم کې باطبعه د بېلو بېلو سیستمونو څخه خبرې وشي نو له دې امله وروستۍ فیصله او د هغې قرار بوازې او یوازې شخصاً په تاسو اعلیحضرت د افغانستان د پاچا په حیث اړه لري او بس.

## ۲-الترناتیف

۱- یو کمیسیون دې چې حقوقي متخصصان او د صلاحیت خاوندان او د تجربې خلک پکښې وي، وټاکل شي چې په نوي اساسي قانون کښه وکړي.
د نوي اساسي قانون پروژه دې د مشروطه سلطنت په اساس جوړه او حکومت ته وړاندې شي.

۲- همدغه راز همدا کمیسیون یا یو بل کمیسیون دې د انتخاباتو قانون او هغه نور مهم قوانینو چې په اساسي قانون پورې اړه لري جوړ او د کتنې د پاره دې حکومت ته وړاندې شي.

۳- د دولت د غور او تصویب څخه وروسته دې او په جرګه جوړه او پورتني قوانین دې لوی جرګې ته د غور تدقیق او تصویب د پاره وړاندې شي.

۴- د لوی جرګې د خوا د اساسي قانون تر تصویب وروسته د انتخاباتو د پاره تیاري ونیول شي او د انتخاباتو د نوي قانون په اساس دې د شورا غړي وټاکل شي.

۵- د انتخاباتو په ختمېدو او د نوي شورا په پرانستلو سره به د یوه ګوندي او یا دوه ګوندي اساس له مخې اوسنی حکومت استعفی وکړي او نوی حکومت به جوړ او د هېواد د چارو واګې به په لاس کې ونیسي باید دغه اجرآت په ټاکلي وخت کې د یوه پروګرام په اساس عملي سي.
(ګراف ضمیمه)

په دغو موضوعاتو کې چې مې د کابینې د ځینو غړو سره په انفرادي او عمومي ډول خبرې کړې دي دا دي:

۱- د صدارت مرستیال علی محمد خان.
۲- خارجه وزیر د صدارت مرستیال.
۳- داخله وزیر
۴- د مالیې وزیر.
۵- د کانو او صنایعو وزیر.
۶- د پوهنې وزیر.
۷- د قبایلو مستقل رئیس.

لومړی الترناتیف:
په مجموعي ډول د ټولو د خوا د ه تطبیق وړ او ګټور ونه بلل شو له دې امله سمدستي د هغه په شا وخوا کې له خبرو صرف نظر وسو.

دوهم الترناتیف په باب له دې امله چې په اجتماعي مسئلو کې یو تحول راسي ټولو د دې ضرورت حس کړی دی او په هغه

# انقلابي حرکت زموږ وروستی فیصله وه

بايد ګمان کوم اتفاق لرونکو
امکانونه د هغه د عملي کولو په
ترڅ کې په نظر نه راځي او افکارو کې
تفاوت نه موجودوي چې طبعاً هيله
لرو د خبرو او مباحثو په وخت کې
په پای کې يوې نتيجې ته ورسيږو.

د ۱۳٤۱ کال د مرغومي د ۲٤
نيټې ليک ا

د اعليحضرت د ۱٤ کال د سنبلې

د ۱۲ نيټې د مکتوب په جواب کې
احتراماً په عرض رسوم:

زما او زما د ملګرو د پاره د
زياتې خوښۍ ځای دی چې هماغسې
اعليحضرت د نيکه مرغه د پرنسيپ
په اصل کې چې فرمايي د دوی
او زموږ يوه ډېره پخوانۍ هيله ده. الحمد لله
د نظر توافق موجود دی.

دغه راز اعليحضرت د يو بل

مهم ټکي سره تماس نيسي او ليکي
«بلکه يو مقدس او پاک ملي هدف دی
چې د دغې دورې د مؤسس يعنې

اعليحضرت محمد نادر شاه شهيد
د عالي افکارو او آرزوګانو
څخه سرچينه نيسي او هغه امانت دی

چې موږ ته سپارل شوی دی» هو دا يو
ربښتينی حقيقت دی او د هغه ستر
شخصيت د عالي افکارو او ارزو
ګانو په هيله چې غواړو هغه مقدس
او پاک مقصد ته چې په هغه کې
د افغان ملت خير او بهبود نغښتی دی
ورسيږو.

د همايوني اعليحضرت د دغه فرمايش
قول تائيد او تصديقوم چې که
چيرې د دغه عالي مفهوم د دغه دورې

طبيعي انجام او وروستی هدف نه وي نو
په حقيقت کې زموږ د پلرونو او ټولې
مبارزې او قربانۍ او ننني کوښښونه خپله

حقيقي معنی د لاسه ورکوي. دا چې د
اعليحضرت حضور د خپل ليک په وروستي
پاراګراف کې وخت او زمان او هغو

اشخاصو او رجالو ته چې سبا د هغو هيلو
د عملي کولو مسئوليت بې له تردده په غاړه
واخلي اشاره کړې او هغه يې د دوه مهم

عامله بلکه د هغو هيلو د تطبيقولو اساسي
شرط ګڼلي دی. د اعليحضرت فرمايش بر
ځای دی دا دې د دغه پيشنهاد په ترځ

کې عرض کيږي چې موږ دې عقيدې ته
رسيدلي يو چې هغه وخت را رسيدلی دی
چې د نوې نهضت شروع شي او هم د هغو

اشخاصو او رجالو منځ ته راتلل چې په آينده
کې د مملکت اداره هغو ته وسپارل شي په
دې پورې مربوط دی چې د نوې نهضت

موجودوي او داسې يو محيط منځ ته راسي
چې د ولس استعداد د راښکاره کيدو
او پراختيا موقع پيدا کړي.

زه عقيده لرم که چيرې د نوې حرکت
له وي هغه رجال چې د راتلونکي اداري
مسئوليت په غاړه راخلي اصلاً په منځ ته
راسي. د دغه يادونې وروسته دا دې په
اصل موضوع باندې شروع کوم:

د ډيری زمانې راهيسې زموږ د ټولو

په ازاد ديو اجتماعي تحول هيله موجوده
ده او د دغې هيلې په پيروي په دې څو
وروستيو کلونو کې د يو هڅې په ترقۍ او
تعميم، د عمومي اقتصاد په انکشاف او د
اجتماعي اصلاحاتو په باره د محيط د تيارولو
او ترقۍ غوښتنې د افکارو په وده کې تر وسه

وسه کوښښ او مجاهدت شوی دی
چې د دغو مجاهدو او انکشافاتو
په نتيجه کې په وطن کې ډير
زيات ځوانان او منورکسان منځ ته
راغلي دي چې اوس د دغه تحول
هيله د يوې تطبيق وړ عقيدې سبب
شوې ده. نو له دې امله هغه وخت

را رسيدلی دی چې په هغو باندې
زيات غور وشي او د هغه کوښښ وشي
چې د افغانستان د خلکو د پاره يو

ډير مناسب او ډير مترقي اجتماعي
او سياسي چاپيريال پيدا شي چې د
عصر او زمانې د خلکو د هيلو سره

سم موافقو شرايطو کې د دغې
خاورې د ټولنې او وګړو د تکامل
سير امکان ولري. د نيکه مرغه د يوې

خوا زموږ د غه هدف د اسلام سپيڅلي
دين تائيدوي او د بلې خوا زموږ
ملي سنن او لرغوني روايات هغه

تائيدوي د دغه شان يوه تحول
د مجموعه هدفونو او غوښتو ټکو د تثبيت
د پاره موږ د خپلو ملګرو سره خبرې

اترې وکړې او د ډيرا تو او اوږدو
خبرو او بحثو نه پس خپلو وروستې
د نظر ته ورسيدو چې د لوی
خدای (ج) په توکل په نهايت او
پراخه حوصله دا نهضت داسې
پيل شي چې کرار کرار په انقلابي
ترګه د لويد وصدارجو سبب او پای
ته ورسيږي د هغې ګټورې او مثبتې
نتيجې لاس ته راسي د دې مقصد
اجرا او د دې نهضت پرمختګ
داسې امکان شويدی چې په دې
ډول عرض کيږي:

الف:

دافغانستان په اساسي قانون باندې چې په بل وخت او زمان کې او په جلا بجا باتوا وشرایطو کې تدوین او ترتیب شو بدې باید تجدید وسي. نوی قانون چې دچا پیریال د پر مشتکې سره سم وي تدوین دې شي ددغه قانون مهم ټکي او خوهدفونه چې اټکل یې په دې ډول دي:

١- شاهي رژیم مشروطه او د حکومت طرز به پارلماني او دیموکراسي سیستم وي، د پاچاهي او د حقوق به په هغه کې تثبیت سي.

پاچاه یووالي او ملي سلطې نښانه او د ټول مملکت شیرازه ده. پاچا تر دې ګوندونو او لوړ دې پاچاه مملکت د لوړې ی فرد په توګه غیر مسئول بلل کیږي. د پاچاهي د مقام د بې طرفي له مسئولیت لازمه د سیاسي ګوندونو په وړاندې او اداري چارو کې لاس نه وهل دي، یعنې انتخابي حکومت به د پوره او ګوونې سیاست د ټاکلي مرام او هدف او د خپل اقتصادي او اجتماعي سلوک په درلودلو سره د هغه په تطبیق او اجرا کې د ټولو ایږو په وچارو مسئول و بلل سي.

ددغه ترتیب کتو ره غا په او نتیجه داده چې پاچاه مملکت در ئیس په توګه په داسي حال کې چې د دې ګوندونو او د نیلو لو نقطه او د ټولو هیلو مرجع بلل کیږي د انتقاد او اغراضو څخه خوندي باتې کیدل د هغه ګرانښت زیاتوي.

٢: اساسي قانون به څرګند کړي چې د سلطنتي کورنۍ غړي کوم ډول څه حقوق لري.

٣: په دغه اساسي قانون کې به فردي ازادي او شخصي حقوق تثبیت سي.

٤: په نوي اساسي قانون کې به دوو ګوندونو د منځ ته راتلو اټکل وسي چې په دوه ګوندیز پارلماني سیستم کې به فعالیت وکي او د شورا د چوکیو د نیولو د پاره به عملي څلې وکړي د اکثریت ګوند ته به پاچاه حکومت د جوړېدو ماموریت ورکي.

څرګندونه.

څنګه چې زموږ په هیواد کې ګوندي فعالیتونه او سیاسي مجادلات سابقه نه لري او ددې د پاره چې دغه فعالیتونه د شقاق او نفاق سبب نه سي او ناوړه سیاسي او فکري کږوږې پیدا نسي د ټولو ګوندونو د پاره به چې زیاتره د شورا د یوې دورې سره سمون خوري یوازې یو ګوند به اجازه ولري فعالیت وکي. هغه کسان چې د دغه ګوند اساس او مرام د خپلو هیلو سره سم و نه ویني به هغه ورګډ او شامل نه سي او د ګوند د مرام سره سم د مملکت په اداره کې برخه اخلي.

هغه کسان چې د دغو اساساتو سره اتفاق و نه لري د غور او فکر د پاره به پوره وخت ولري چې د ځان د پاره مرام او نور اساسات چې د مملکت د خیر او نیکمرغي د پاره وي غوره کي په هغه صورت کې چې د غې یوې بلې هیلې په محیط کې پوره وده کړې وي او د ټاکلې مودې تر تیریدو وروسته به دوهم ګوند تاسیس کړه سي.

٥- نوي قانون به د انتثبیت کي چې دولت د تقنینیه، اجرائیه او قضائیه دری ګونو قواو څخه عبارت دی. تقنینیه قوه د شورا د مجلس څخه عبارت ده چې نمایندګان به د ټاکلي انتخابي حوزو څخه د تثبیت سره و ګوندو او له غړو څخه ټاکي.

قضائیه قوه د ابتدائیه، مرافعه او تمیز د دری ګونو محکمې څخه عبارت ده او د اجرائیه قوې د نفوذ د اعمال او تاثیر نه به بیغي خوندي او محفوظ وي.

اجرائیه قوه د حکومت څخه عبارت ده چې د اکثریت د ګوند څخه جوړه سوي او د اداري امنی او د قانوني ټاکلو او ګانو نو په وسیله مملکت اداره کوي.

٦: د انتخاباتو قانون به د دیموکراسي پارلماني نظام د شرایطو سره سم ترتیب سي.

ب) په هغه صورت کې چې د اساسي قانون د نوي کیدو اساس منظور سي او د هغه د تدوینولو د پاره تصمیم و نیول سي، دغه اقدامات باید وسي:

١- د دولت د خوا د یوې ابلاغیې خپرول چې د دغه تحول شروع د هغه د پروګرام سره و ها مه خبرتیا

# انقلابی حرکت زموږ د وروستی فیصله وه

دپاره ورسوی.

۲– یو شمېر عالمان او متخصصین به د اساسی قانون د مسودې د تثبیت او تدوین دپاره موظف کړه شي چې دغه مسوده د اکثر حد ۱۲ میاشتو په موده کې ترتیب کړي.

نوټ: په اعلامیه کې به دغه موده د عامه خبرتیا دپاره ورسول شي.

۳: د مسودې د برابرولو څخه وروسته دې لویه جرگه راوبلل شي چې د مېمور تا او د مجلس په حیث دغه قانون تدقیق او تصویب کې.

٤: د قانون د تصویب څخه وروسته چې د لویې جرگې د خوا وشي حکومت به اجازه ورکې چې لومړی گوند په محیط کې په فعالیت شروع وکي او خپل نمایندگان د کوندې مر اړاد لارې ملي شورا ته واستوي.

ددې دپاره چې دغه فعالیت وشي حد اکثر به شپږ میاشتې وخت ورکول شي د شپږو میاشتو څخه وروسته به لوی شورا پرانستل شي او نوی حکومت به د انتخاباتو د لارې داوی اساس قانون سره سم جوړ شي

په دغه موده کې چې لوی اساس قانون تدوین او ترتیبیږی حکومت به اجازه ورکې چې دلومړی گوند په باره کې مطالعې وشی او مقدمات یې برابر کړه شي.

ج: په دغسی سیستم کې چې د عقیدی او بیان آزادی، د اجتماع آزادی او سیاسي فعالیت ژیاتیږی او د اجتماعی ژوند له هنگامه تودیږی سر پرست حکومت او د هغه څخه وروسته حکومتونه به د امنیت د ساتنې او د ملي گټو د ساتنې دپاره ژیاتی پاملرنی او کلکی ځارنی او دغې برمسئولیت سره مخامخ سي ووډی دپاره چې د ملي گټو د ساتنې او دغا مه امنیت به نامه حکومت په اقتصادي اقدامانو او هندي نظرباتو لاس پورې نه کی او به دغی آزادی کی بی ځایه لاس ونه وهی او ددې دپاره چې حکومت خپل مسئولیت قانوني او په بنه توگه سرته ورسولی وی

د امنیت د ساتنې دپاره قانون منع ته د اتلل ضروري ایدل کیږی او هم د مراجعو او محاکمو تاسیس لازم دی چې په دغسی پېښو

باندی غور وکی، او په د پوره چټکتیا د غسی متهمینو په محاکمه او د مسئولیت په ټاکلو پيل وکی ځکه په هغه موده کی چې اساسی

قانون جوړیږی د دی قانون مسوده دې هم برابره سي.

داده زما مشکوره او پیشنهاد (یعنی

زما د ملگرو او زما) چې په پوره ته ول ستاسو حضور ته عرض کی سوه.

اعلیحضرتا!

په پای کی غواړم خپل شخصی عقیده ستاسو حضور ته عرض کړم باید د پوهیږو چې دغه ستر اقدام او نسو لدی او هر ستر اقدام په تیره بیا زموږ په هیواد کی شك لسته چې ستر مشکلات به ولري خو له مشکلاتو تیریدل او د مقصد پوا و ته رسیدل په هغه وخت کی امکان لري چې انسانان لوړی پر هغه مشکوره پوره عقیده ولري او د هغو مشکلات او خطر وله لی په پوره معنی منلی وی او ورو سته له هغه په تطبیق او عملی کولو کی به ټینګ عزم خود گذری، صمیمیت او پوره جنه نیت د ستر خدای په توکل څخه وکی او د پاك خدای په مرسته به مخ ولاړ سی، به پای کی ستاسی اعلیحضرت روغتیا بریالی توب او ددنیا

او آخرت سمان د بی نیاز خدای د در باره څخه هیله کوم په

ډیرو احتراماتو.

د ۱۳٤۱ کال د کب د ۱۱ نیټی لیکنه

د القابو څخه وروسته.

لیه کاله مخکی د مېوان میاشت.

وه چې تاسو اعلیحضرت اعتماد وکی د صدارت عظمی وظیفه مو ما ته راوسپارل په هم هغه وخت کی می

که ستاسو حضور ته په یادوی عرض وکي چې امکان لري زیاته اندازه تر دربو کلونو پوري وکی ای سم

داددنه وظیفه سرته ورسوم په دغه موده کی د اسی واهمات پیش سول چې د مجبوریت له مخی یې دو ظیفې

دوام ایجاب کاوه په تیره بیا د لومړی پنځه کلن پلان شروع او بشپړ بدل چې اصوه قول په اخلاقی

ډول د افغانستان د خلکو په مقابل کی د هغه په اجراعاتو ته موظف بلل، زیاتره ددې سبب سوه چې د هغه څه له چې لازمه وه او اشکل مو کړی ؤ ډیره موده په دې وظیفه پاته سوم.

د هیواد لومړی د انکشافی پنځه کلن پلان د هغو ټولو لیمگی تیاو او مشکلاتو سره چې موجود وه تر هغه ځایه چې شخصی استعداد د هیواد مالی قدرت او د افغانستان داخلي او خارجی سیاست اجازه درکول او ایجابوله بی تر وسه وسه کوښښ وسو چې د هغه څخه بیا ته فیصدی چې په پلان کی اشکل سوی ؤ

بشپړه سي او لوی خدای (ج) ته شکر کوم چې هغه پلان د افغانستان د نجیبو خلکو په صمیمانه همکاری بو

او د هغو ظفو مامورینو په هلو ځلو او زیار ایستلو بو لیم کال مخکی پای ته ورسید.

دوهم پلان طرح او د لسو میاشتو د اپه پخوا د هغه کار شروع سوی چې هیله لرم بیا هم د دولت او

ملت په زړه ی همکاری د افغان ملت پـه خیر او نیکمرغی بریالی پای ته ورسـیږي.

او ګران افغانستان بو بل ګام د مادی او معنوی پرمختیا او پرمختګ په لور چې د هر وطن

دوست و کړي هیله او آرزو ده، لا نژدی کی.

اعلیحضرتا:

زما په عقیده هیواد ته په صداقت خدمت او خلکو ته له خدمت څخه بل سپیڅلی شی نه شته او که چیری

د یوه انسان د پاره ژوند ارزښت لری بیا هم د هغه حقیقی ارزښت او قیمت په همدی کی دی او بس

خو دا عقیده په تیره بیا په حساس او مسئولیت لرونکو پوستونو کی تر هغه وخته پوری ارزښت اری

چې اشخاص د کولای سی په ښه توګه خپلو وظیفو او اداری او وجدانی مسئولیتونه ترسره کی. خو هم

دا چې یو سړی د یو هیڅ ی او حس کی چې د معاذیرو له مخې نور د هغه وظیفې د سرته رسولو توان نه لری او بیا هم وظیفی ته دوام

ور کړي زما په عقیده ګناه ده.

ان د ژیا تو معاذیرو له مخې چې ستاسو حضور ته پرچه په هر یوه باندی پوهیږی او

د ځیرو کلونو راهیسې می هیڅ پر ستاسی د حضور څخه پټ نه دی ساتلی، حس کوم چې تر دی زیات که د طرز تفکر د اظهار موی

که د صحی حالت د اظهار په وظیفی باندی زما دوام سخت پر ښځی د هیواد د اساسی قانون په ترمیم باندی د خوړ او د یوی

تابعې آینده ی د پاره د افغانستان د خلکو په اجتماعی حالت کی د تحول د پیدا کیدو او زموږ په وطن کی د دیمو کراسی په

باب می ځان او د کابینې ځینو ملګرو خصوصی نظریات او پیشنهادونه د مرقومې په ۲٤ نیټه ستاسو حضور ته وړاندی کړل.

اوس ځلو ښه ورځی و سوی تر اوسه پوری می کوم مثبت یا منفی جواب

نه دی ترلاسه کړی به دی ځای کی می د هغه ن یادولو څخه مقصد د جواب د تر لاسه کولو د پاره ټینګار نه دی بلکه

یوازنی مقصد د هغه وطن په خدمت کی د څو کلونو تجربو نه وروسته او د مملکت د حالاتو د حقایقو په پوهیدو سره بیا هم

که چیري د صدارت عظمی چوکی غنیمت کڼم او د هغه وظیفی ته دوام ورکوم نه یوازی ستاسو د اعتماد څخه می بده

استفاده کړی ده بلکه د خپل ژوندانه د عقیدی او هدف د اصلو نو په خلاف به می رفتار کړی وی.

نو له دی امله په پوره احترام سره د هغه اعتماد نه چې د ماموریت په ټولو دورو کی په ما باندی سوی دی د زړه له کومې شکر په او منته څرګندوم د دغه

لیک په وسیله خپله استعفی تاسو اعلیحضرت ته وړاندی کوم.

د ګران وطن نیکمرغی او

لوړتیا او د افغانستان د خدمت په لاره کی ستاسو اعلیحضرت بری د لوی خدای څخه غواړم.

پـه ډ یـــــره درنـــا وی

زما د استعفی څخه ۱۱ میاشتی وروسته د وخت صدر اعظم ښاغلی

دکتور یوسف خان د نوی اساسی قانون مسوده (چې اصلاً یو انجام سوی عمل و) د خود مولیتی په ډول

د نظر د څرګندولو د پاره ماته را واستوله لومړی می معذرت و غوښت خو څرنګه چې ټینګار یې

وکړ مجبوراً می هغه مطالعه او هغه څه چې می د اصلاح وړ ګڼل د ۳٤ کال د قوس د ۳۰ نیټی د لیک

په ملتیا هغه ته واستول چې دا دی د هغه نقل تاسو ګرانو وطنوالو ته رسوم:

جلالتماب صدر اعظم!

د عقرب په ۱۱ نیټه ستاسو د هدایت سره سم د افغانستان د نوی

اساسی قانون مسوده د یو هغی د وزیرانو د صدارت عظمی د دوهم مرستیال جلالتماب دکتور یوپل په

واسطه د مطالعی د نظر د څرګندولو د پاره ماته و سپارل سوه.

تر کومه ځایه چې زما لپاره ممکنه وه په هغه باندی می غور وکړ او دا دی مسوده چې قول ئی د مملکت د آینده ی له پاره د د سی یو مهم سند مربوط چې زما نظریه هم پکښی سته! تاسو ته وړاندی کوم.

# انقلابي حرکت زموږ وروستی فیصله وه

لکه څنګه چې مطالعه کوې تر وسه
وسه مې ډیره پسندیدلې ده زیاتره
د لومړۍ مسودې څخه لرې ولاړه

خو، بیا هم د هغه په څېر برخو کې
بدلون راغلی دی چې په هغې کې
هغه قول سره ددې چې په هغه کې

زما په نظر کوم اصلاحات لازم
ندي ګڼل شوي، د بلې مسودې
په توګه د افغانستان د راتلونکي

اساسي قانون د پاره تاسو ته
پیشنهاد کړم.
جلالتمابا!

زما سره د همکارۍ د اوږدې
سابقې په لړ لو د وطن او وطنوالو
پاره زما د نظر یو او هیلو څخه

خبر یاست او ددې امله هغه بدلون
چې په لومړۍ مسوده کې راغلی
دی په اساني سره تاسو ته روښانه

کیږي. سره د دې چې ګڼم څرګنده
کړم چې بنده د خپل وطن په خدمت
کښې د مسئولیت د تصدۍ په اوږدو

کې د داسې هدف په لټه کې وم چې د
افغانستان د ولس په تیره بیا
زموږ د هیواد د ځوان نسل د پاره

د مادي او معنوي ودې مثبت او
واقعي محیط منځ ته راسي. او په
هغه کې زموږ د وطن ټول وګړي

د خپل وطن د لوړتیا او ابادۍ په
لار کې برخه واخلي او د مسئولیت
احساس وکړي.

ډېره موده تېره سوه او زیات کوښښ
وسو تر څو چې هغه عوامل چې د تجربو
له مخه په بېلو بېلو ستونزو سره د غښي

مقصد ته د رسېدو څخه ګډل ورو ورو
له منځه یوسو او په تېره بیا په مملکت کې
د اعتماد او امنیت ټینګښت کوچې په سالم

ډول اجتماعي مثبت تحول ته اجازه
ورکوي. زلمي نسل ته د مسئولیت احساس
ورپه برخه کړي څو د خرافي او ارتجاعي

حرکاتو د ودې مخنوی وکړي. د دغو
مراحلو د تېرېدو څخه وروسته
مې بل علت نه لیدی چې زموږ په وطن کې

مشکېدنې مقصد ته د رسېدو په غرض نوې
صفحه خلاصه نسي یا د خپل وطن د راتلونکي
نیکمرغۍ د پاره د یوې واقعي او معقولې

ډیموکراسۍ د ټینګېدو څخه پرته بله
لار نه درلوده. او نه ئې لرم. زما په نظر
باید د دغسې یو اجتماعي حالت اصل

بنسټونه د ولس د حقوقو پوره تامین او
د ملي حاکمیت په اصل پوره اعتراف
وګڼل سي چې باید دوو پاسنیو اصلونو

ته په څرګنده او یا پټ ډول کوم خلل ونه
رسیږي. یقین لرم تاسو جلالتماب د ضمیمه
مسودې مطالعې ته متوجه کیږئ چې په

لومړۍ مسوده کې قول وارد سوي
اصلاحات د مشکېو دوو اصلونو څخه
پیدا سوي دي. په درناوۍ

د استقلال په ورځ اندې کولو او
د افغانستان د نجیب ملت ولس ته خطاب په

وروستۍ راډیویي پیغام زما د
مامورېت دوره پای ته ورسېده
په هیواد کې د وروستیو پېښو

تفصیل او څرګندول چې تر اوسه
لاهم زموږ د ولس په ذهن او حافظه
کې ژوندۍ او دي د تاریخ هغه فصل

دی چې د هغې دورې د تورو فصلونو
سره یو ځای د هغه په هکله د شپه
د تاریخ جز شو.

د ختم دوره او نوی فصل
شروع سو او له دې امله چه دا ده
چې د هغه توضیح بیان او قضاوت

هم د افغانستان راتلونکي تاریخ
ته پرېږدو او د خپل د راتلونکي
احوال ته متوجه سو.

د امر سره سم د ښې پوره پېره بېچه زموږ
د انقلاب حرکت شروع سو او
سهار وختي د ښار ټول ستراتیژي

ځایونه ونیول شول او هغه کسان
چې لازم وه بندیان او د ۲۵ کال
د چنګاښ د ۲۶ نیټې د سهار په ۷ بجو

چې روښانه او ځلانده جمهوري
نظام وځلید د مملکت ټوله اداره
د جمهوریت تر لوا لاندې

راغلې وه.
هغه جمهوریت چې د افغانستان
د ملت په اراده او په خپله د افغانستان

د ولس د ر اوان د هغه لومړۍ
کالیزه په پوره خوشحالۍ
لمانځو.

په همدې وخت کې د ځان او د خپلو ملګرو د خوا زموږ د څه ملګري جګړن حبيب الله خان په ږاندرته چې د وظيفې د اجرا په وخت کې د افغانستان د جمهوريت د خدمت په لاره کې د خپلو نورو

څو تنو ملګرو سره شهيدان سول زيات درود استوم. په دغه بختور ساعت کې يو ځل بيا ځان او

وجدان مکلف ګڼم چې د ځان د خپلو وطن دوستو ملګرو او د فدا کاره اردو سپاسګذاري

د افغانستان مېړنيو او قدر پېژندونکو خلکو ته د څه تاوده هر کلي او د زړه له کومې همکاري

څخه چې د جمهوريت د اعلام د ورځې څخه تر دغه شېبې پورې خپل جمهوري دولت ته څرګنده کړې ده وړاندې

کړم.

د افغانستان د خارجي سياست اساس د زياتو کلونو او د جمهوري

نظام د اعلام د وخت نه چې افغانستان د خلکو د ازادانه ارادې څخه الهام اخلي. په بې

طرفۍ او آزاد قضاوت، په پوځي ډلو کې د نه يو ځای کېدو او د متقابل احترام په اساس په سوله

کې د ژوند کولو او د نړۍ د ټولو خلکو سره د صميمانه او دوستانه علايقو د ورځ په ورځ تقويه کېدو

د څه د ملګرو ملتو منشور ته په درنه سترګه کتلو ولاړ

دی.

د دغه اساساتو په پيروۍ په

څه يو کال کې چې تير سو زښت زيات وايستل سو تر څو کولای شو د انقلاب هدف او د خارجي سياست دريځ او د

افغانستان د جمهوري دولت او خلکو دوستانه نيت د دوستانه علايقو په ټينګېدو کې د متقابل احترام پر اساس

د درستو هيوادو او واکدارانو ته د مخصوص او فوق العاده نمايندو او د لوی رتبې د لوړو مامورينو په وسيله چې هر ځای

ته سفرونه وکړل څرګند او پايري

واچوو.

بايد ټول وطنوال په دې خبر کړم چې

څنګه ټولو تماسو او په تيره بيا شوروي اتحاد، هند، عراق، ليبيا، الجزاير، مصر، سعودي عربستان او ايران ته زموږ د خاص

او فوق العاده نماينده ښاغلي محمد نعيم د سفرونو څخه ډېرې ګټورې او اغيزمنې نتيجې لاس ته راغلي دي. اميدوار يو زموږ

د ولسونو په ګټه او د دغو ملکو او نورو هيوادو سره زموږ د دوستانه روابطو په زياتې ټينګښت او سوله کې ښه خدمت

وکړو.

دغه راز د ترکيې، هند او بنګله ديش ته د بانديو چارو د وزارت د سياسي معين

ښاغلي وحيد عبدالله سفرونه او د مالېزيا په اسلامي جرګه کې د دوی فعاله برخه اخيستل او د الجزاير او لاهور په اسلامي

جرګو کښې د ښاغلي عبدالرحمن پژواك فعاله برخه د خوښۍ وړ ده.

کابل ته د افغانستان د حکومت په

بلنه د هند د بانديو چارو ښاغلي وزير دوستانه سفر چې په دوستانه فضا کې وسو د افغانستان او هند د پخوانۍ دوستۍ په روابطو کې زيات خدمت وکړ.

د شوروي اتحاد د واکدارانو د حکومت په بلنه زما سفر چې په تودو او په زړه پورې فضا کې وسو

او ډېر ګټور او ثمر بښونکی و يو ځل بيا د دغه ګاونډي لوی سياستمدارانو او د خلکو

او واکدارانو نه ګټوره پېژندونکې دوستي ثابته کړه او زموږ دوستانه روابط يې لا پسې ټينګ

کړل.

زموږ د بل ګاونډي ايران سره روابط چې تل د دوستۍ او

ورورګلوۍ په ستنو ولاړ دي په وروستيو تماسو نور هم لا پسې ټينګ شويدي. نو اميدوار يم چې

زموږ د ولسونو او د آسيا د دغې سيمې د سولې د ټينګښت په ګټه ګټور او اغيزه من واقع سي.

زموږ د بل ستر ګاونډي چين سره زموږ روابط دوستانه او په نورماله توګه دوام لري.

بيا هم پاکستان ازيا په ښه توګه روابط د پاکستان حکومت څه يوازې مملکت دی چې نه يوازې

دا چې زموږ روابطو ته يې ښه سوي بلکه د پاکستان د نا عاقبت انديشه واکدارانو سلوك د افغانستان

د جمهوري نظام په مقابل کې د دوی د دسيسو او تخريبي تګلارو پښتنو او بلوڅو ورونو په وړاندې د دوی

د تاوده او جابرانه سلوك په اثر لا پسې خپږي. زموږ يو ځل بيا وايو چې موږ د پاکستان سره د پښتنو او بلوڅو ورونو د سرنوشت د ټاکلو د قضيې

# انقلابي حرکت زموږ وروستۍ فیصله وه

څخه پرته بل هیڅ اختلاف نه لرو او هیڅ ډول لمسون تخریب او کوایف نه سي کولای بهتیا نه

او بلوڅ خلک د خپلې مجادلې او افغانستان د هغوی د روا حق د تایید څخه وادي دي.

هر کله چې د افغانستان جمهوري دولت په پوره پراخه حوصله او سره سینه د دغې قضیې

د روغې جوړې شرافتمندانه حل لارې د پیدا کولو په لار کې تل کوښښ وکې. په دغه وخت کې

لازمه گڼم چې د افغانستان د دولت او خلکو تشکرات ټولو دوستو ملکو او بین المللي موسساتو ته چې

د هیواد په پرمختیایي لاره کې یې دوستانه مرستې او کومکونه کړي دي او زموږ د ولس د ژوندانه د

سطحې په لوړولو کې مهمه اغیزه لري په پوره صمیمیت وړاندې کړم.

په داسې حال کې چې زموږ ټولنه د عمل زیاته چټکتیا او مجدانه تپور غواړي د هغو ستونزو

او ځنډونو مخه نیسه چې د هیواد د ارتقا په لار کې پیدا سوي دي د وطن ټولو طبقو همکاري

غواړي.

تر څو دغه آغاز مطلوب فرجام ته ورسیږي او زموږ ستراتیژیکه اهداف تحقق ومومي.

مشکل نه دی چې د تیر یو کال د اجراآتو په باب یادونه وکړم لازمه گڼم ووایم چې د افغانستان د ځوان جمهوریت د اردو

تنظیم، سمبالښت او روزنه د جمهوري دولت یوه ډیره مهمه مقدسه وظیفه بلل کیږي د دولت دغه مهم او حیاتي مامول

ته د رسیدو د پاره موږ تر اوسه پوري د هیڅ ډول لازمو اجراآتو څخه ډډه نه ده کړې او به یې نه کړو څو چې زموږ ځوان اردو

دغه مقدسه وظیفه چې په غاړه یې لري په پوره ډاډ او په ډیره ښه توگه د اوی خدای په فضل سر ته ورسولای سي.

موږ ته هغه او س د یو کال د وخت نه دا له د ټولي خبري تصویر په مخ کې پروت دی ترڅو اقتیدونه دغه حقیقت بیان وي چې

موږ او زموږ قهرمان وطنوال د شریفانه هدفونو د تر سره کیدو او د خپل ملي نصب العین په لار کې د ټو ټو او د سیمو

سره په خپل ایمان باندي په اتکا او د افغاني مثبت ناپیلتوب لازم د ترقي هدفونو په رڼا کې د باور او تخریبونو څخه ډیری

پر ته د وان یو او هم هغسې په مخ ولاړ سو. که څه هم د تکامل لار ډیره سخته ده او سره د دې چې د تاریخ سپارښتې ډیرې

درنه د خو وطنپالان او سرښندونکي، د اخطرونه په زړه ورتیا سره مني. موږ ډیره لرو او په هیلې له به په مخ ولاړ

سو. ځکه زموږ لار سپیڅلې او زموږ هدف روښانه دي.

افغانستان د پلان جوړ ، او د یوه

سیستماتیک سلوک د تطبیق په اتکا چې د اقتصادي واقعیتونو منعکس کوونکی وه په لومړي او

دوهم دوو اقتصادي پلانونو کې وکولای سول نسبتاً یوه پراخ اقتصادي بنیاد کښیږدي د یو شمیر

سترو بنیادي پروژو بشپړتیا چې زموږ وطنوال او د سره په سترگو ولیدل د اصولي اوښتون سبب سوه

او په ټولو اقتصادي سکتورونو کې د تولیدي پروژو د تطبیق لار اواره کړه. د تولیدي عواملو

سیاست په پراخه اندازه تامین سوا او د بل هر وخت په مقایسه بانکي د تشویق اندازه زیاته

سوه. د دوهم پلان په پای کې او په ټول دریم پلان کې د هیواد د اقتصادي پرمختگ سیر د پرمختیا

د ملي ایډیالوژۍ د نشتوالي په علت سخت سوا او په نتیجه کې په اداري، سیاسي، اقتصادي او

مالي موسسو کې بې انسجامي د نفوس او د اړتیا د زیاتیدو په مقایسه د اقتصادي ودې آهنگ د ځنډ

سره مخامخ سو. د بانکي د تشکیل د اندازې او د بانکي اچولو حجم د کموالي په اثر د عوایدو اندازه

زیاته نه سوه. او د مشکلتونو تاسیس سوو ظرفیتونو څخه هم گټوره استفاده و نه سوه. دغه کار د بیکاري

د پیدا کیدو، اقتصادي ځنډ او د اقتصادي ناسالمۍ او نا انډولیزي و دي عامل شو.

د افغانستان د څلورم پلان مسوده د ناوړه مالي اقتصادي شرایطو له مخې طرحه شوه او د پر له پسې زیار سره سره د جمهوریت په لومړي کال کې چې د څلورم پلان د دوهم کال سره سمون خوري د هیواد د اقتصاد په قیافه کې دوره ستنه پاتې کیدو او ځنډ لنډي انها ته رسیدل کیدی. د جمهوري رژیم په پخور اعلام سره د افغانستان حکومت د اقتصادي مسئلو واقعي درک او د هغو د سالم حل د لاري لهو لو ته د افغانستان ملي مسئلو په سر کې ځای ورکړ.

د افغانستان جمهوري حکومت په ۱۳۵۲ کال کې زیار وایست د یوې خوا د اقتصادي ودې آهنګ ګړندی کړي او د بلې خوا تر کومه ځایه چې ممکن وي د اقتصادي لا زیاتې سالمې ودې په مقصد اقتصادي متین اساسات وضع شي.

اجازه راکړئ چې په ۱۳۵۲ کال کې د افغانستان په مهمو مختلفو فعالیتونو او اقتصادي دریځ باندې چې د افغانستان د ځوان جمهوریت د لومړي کال سره مصادف دي تاسې خبر کړم او په لنډه توګه د را تلونکې ودې د امکاناتو په اساسي ټکو باندې د رڼا واچوم.

د کانو او صنایعو په برخه کې د کانو په تیره بیا د هغو کانو او د سیمو د میندلو او تثبیت د پاره چې د هغو د استحصال تجارتي اهمیت لري په بیړه څیړنې وشوې. د سروزرو سیمه پوره سروې، کرومیت او ابرک د کانو په برخه کې پلټنو دوام کړی دی او د لوګر د مسو د کان په برخه کې د پلټنو پروګرام چې د څیړنو تللونکې ژ بړی را کوي ځای کړه شو.

په یو پر ۵۰۰۰۰۰ زره مقیاس د افغانستان جیالوجي نقشه بشپړه شوه. هم د سپین سروزرو اکتشافي چارې پای ته ورسیدې او د هغو د استحصال د پاره جدي اقدامات تر لاس لاندې ونیول شوه.

د نفتو او ګاز د پلټنو پروګرام د هغو د ذخیرو د تثبیت په مقصد دوام وکړ او پراخ کړه شو او په تشکیل شوي پلان باندې څه نا څه ۲۰۰۰۰ متره اکتشافي او استخراجي ما ژ ده برمه کاري وشوه.

د ۱۵ ملیارد مکعب مترو په اندازه د سلفر لرونکي ګاز په دغه ذخیره کې په زیاتوالي او د پخوانۍ ذخیرې څخه په استفادې کولو سره د پروژې جوړولو د ګاز څخه د سلفر د بیلولو د فابریکې تیوري لاسلیک او د هغې کار د پیل کیږي.

د غه راز د نفتو د نوې ذخیرې په پیدا کیدو او په دغه برخه کې د فعالیت په زیاتوالي سره به د نفتو د چاڼولو د فابریکې پروژه جوړول چې په تیر وخت کې د شل زره ټنه په ظرفیت په نظر کې نیول شوې وه په زیات ظرفیت د تطبیق وړ ګرځول شوې.

د آمو د سیند د پاسه د ۶۶۰ مترو په اوږدوالي د ګاز هوایي پایپ لاین بشپړ او په استعمال شو، د پیرا یټو د کان څخه چې په ۱۳۵۲ کال په ورو ستنیو میاشتو کې په استعمال شو د ۷۰۰۰ ټنو څخه په زیاته اندازه پیرا یټ را ایستل شول د صنایعو په ساحه کې د ژرا هتی موا دو په تیره بیا د بوټو د زیاتوالي او د سمنټو صنعتي تاسیساتو د ظرفیت څخه د زیاتې استفادې او د کارګر د کار د ساعتونو او د مزد د کمې اندازې د تثبیت په نتیجه کې د ۱۳۵۱ کال په مقایسه د صنعتي تولیداتو د زیاتوالي د پاره ښه زمینه برابره شوه.

د کرکیلو څو کر الو په برخه کې د هـــامـــو اقتـــصادي د پوره کولو په برخه کې تجویز ونیول شو چې د افغان، بلخ، او یکرامیو لسا چې قا بریکې دي د دوو شفتونو په ځای په درو شفتونو کې فعالیت وکړي. د غه کار د لنګه ځنګه چې وویل شوه له یوازې دا چې په ژ بڼه زیاته اندازه په د خلکو دا ړه تیا و په پوره کولو کې مرسته وکړي بلکه څه د پاسه د یو زرو تنو د استخدام د پاره به لار وار ه کړي.

د سرې او ځر ارتې پر یښنا فا بریکه د ساختماني چارو د بشپړیدو او د استعمالي دورې د تو لید څخه ور وسته په دې ورو ستیو وختو کې پر استعمال شوه.

«پاته په ۲۲ مخ کې»

اجتماعی شعور شکلونو ته لار کی

د نثار احمد ارزمند

ژباړه

# هــنــر

## هنر څه شی دی؟

هنر د انسان د خلاقه فعالیت بیل بیل ډولونه دی لکه موسیقی تیاتر، سینما، معماری، هجاری نقاشی، ادبیات او داسی نور او د اجتماعی شعور داسی شکل دی چی واقعیت د مشخصو هنری څیرو په شکل منعکسوی (نه د علمی تجرید د مفهومونو په شکل) او یوازی د څیرو د لاری د واقعیت درک نه، بلکه د معنوی تاثیر وسیله هم ده.

د لته مهمه ده چی موږ د «مفهوم او څیری» یا (هنری تصویر) تر منځ توپیر درک کړو.

مفهوم، د فکری فعالیت یو اساسی واحد دی او هغه منطقی شکل دی چی د منطقی تفکر او ر شکلونه (یعنی حکم، قضاوت او استنتاج) د هغه په مرسته جوړیږی. مفهوم که تجریدی او که تعمیمی وی جوته ده یی یوازی د انتزاع د مرسته رسیدلو د لاری څخه ممکن دی او هغه څه چی په شیانو او پدیدو کی ماهوی او عام دی جلا کوی او د هغه څخه مفهوم جوړه وی لکه د طبیعی او اجتماعی علومو او تولنه مقولی او قوله عام اسمونه کند یوه ذات اساسی وی او که مجرد.

خو څیره یا هنری تصویر چی په هنر کی د واقعیت د انعکاس او څرګندیدو طرز دی، لکه مفهوم د پدیدو عمومی خواص منعکسوی او تعمیمی اړخ لری که په مفهوم کی د عام د څه اړخ یو مجرد عام دی د لته د مشخص عام (لکه د تیاتر پروسو ناو، د ناول قهرمانان، د ونداله او طبیعت منظری، ادبی تعبیرونه او تشبیه ګانی) سره مخامخ یو چی څرګندوی بیلی بیلی پدیدی چی سجیه ګی او هنری ارزښت او اهمیت لری منعکس کړی. د څیری یا تصویر په تو ګه د عینی واقعیت انعکاس د هنرمند د ذهنی نظر ګاه څخه سره ته رسیږی. تو څکه هنری تصویر د عمومی او ځانګړی عینی او ذهنی، مادی او معنوی خاص وحدت دی د هنر د پیدایښت تاریخ ډیر زوړ دی، د لومړی کمونو لومړی یو دورو او تر هغه د مخه د انسانی ګلو ودورو (د نا ندرتال انسانانو په وسیله د غارو د نقاشی دوری) ته رسیږی.

هنر یو د بل سره د انسانانو او د طبیعت سره د انسانانو د اړیکی د خاص شکل په توګه منځ ته راغی او تر ټولو زیات د تاریخ د دوره د «خود اګاهی» او «ځان بیانولو» په ډیر مهم افزار بانـدی اوړی.

هغه وظیفی چی هنر ئی سر ته رسوی دادی:

۱ــ معرفتی وظیفه: د ټولنی، د انسان او د تاریخ د ځانګړی دوری پیژندل

۲ــ تربیتی وظیفه: د خپل اخلاق او معنوی تکامل پر لور د انسان بدلون.

۳ــ سجیه ګی وظیفه: د انسان د ذوق، سلیقی، حساسیت، روحی ظرافت او قضاوت لوړول.

هنرمند چی هنری اثر منځ ته راوړی. طبیعت او ژوند: ځان له نظره څخه بیانوی او هغه د ټولنی و قضاوت ته سپاری دی. د خپل اثر د اجتماعی او تربیتی تاثیر په علت د ټولنی په مقابل کی مسئول دی.

هنر د هنر د پاره مفهوم نه لری د ټولنی د هغه رنګه د اړ تیا څخه مجرد هنر، د طبقو، مسایلو او اجتماعی څخه پر ته هنر و جود نلری

«پاته په ۲۷مخ کی»




# هرمان لتسه

## Hermann Lotze

لتسه په ۱۸۱۷ کې زېږېدلی دی. طب او طبیعي علوم یې زده کړه، په دغو فنونو او فلسفه کې په استادي ومنل سو. ژوند یې بیخي بې جنجاله او ټول علمي مطالعاتو ته وقف و. کله چې به له زیاتې مطالعې خفه ستړی سو نو صنعت او ادب ته به یې مخ کړ. ۶٤ کاله یې ژوند وکړ او په ۱۸۸۱ کې یې اخري سترګې پټې کړې.

لتسه پر ډېرو پخوانیو حکماوو دا اعتراض کاوه چې دوی طبیعت د سترګو په نظر کتلی دی او پر مادي فلاسفه یې ایراد نیوی چې د وجود یوازې صورت یا ظاهري قشر منظور ګڼي. خود یې په خپله په دې عقیده دی: هغه باید واقعي وجود ومنل سي. شک نشته چې عالم یو معنوي او معقول حقیقت لري چې عالم ټول د هغه ښکاره دی او باید په هغه حقیقت پسې ولاړ سو. مګر د هغه باطن په ظاهري ادوارو کې لټولای سو لکه څرنګه چې روح په جسم کې موندل کېږي.

د جهان او طبیعي امورو په هکله د لتسه عقیده په دې ډول خلاصه کوو: عالم د متکثرو شیانو یوه مجموعه ده، مګر وینو چې دغه شیان یو پر بل د فعل او انفعال له امله اغیزه لري نو ویلای سو چې دغه شیان یو له بله مستقل نه دي ځکه چې د یوه مستقل شي اغیزه پر بل مستقل شي باندې هیڅ مفهوم نه لري. له دې امله ټول شیان یو د بله مستقل او جلا نه دي بلکه یو د بله معنوي اړیکې لري یا په بل عبارت: هغه څه چې موږ یې وینو هغه د یوه اصل ذات مختلف حالات دي چې هغه د ټولو شیانو اصلي او کلي مبدا ده.

لتسه د لایبنیتس په څېر لایتجزی اجزاوو وجود ته قایل دی چې هغه د قدرت او اثر مرکز ګڼي او هغه ته په ابعادو نه قایلیږي. ځکه چې بعد د نورو محسوسو کیفیتو په څېر یو پر بل باندې د لایتجزی اجزاوو د فعل او انفعال نتیجه ده. په بل عبارت، لایتجزی اجزاء جسمیت نه لري.

په هر صورت زموږ علم د مادي جهان په هکله صرف د اجزاوو د نسبت او روابطو په باب دی چې یو له بله یې سره لري او فقط ظاهري صورت موږ ته راڅرګندوي. که وغواړو باطني جهان درک کړو نو بله چاره نه لرو بې له دې چې خپل باطن ته رجوع وکړو او د باطن او حقیقت له امر څخه هیڅ پوهه او د پوهې وسیله نه لرو. مګر دا چې د نفس قیاس وکړو او دا کار چې موږ کړی نو دا چاره د جهان کلیه جاندار ګڼو، بې جانه وجود معنی نه لري او د موجوداتو جانداري په مراتبو او درجاتو کې توپیر لري. مګر یو اصلي وجود او حقیقت پر ټولو موجوداتو احاطه لري، چې د اجزاوو یو د بله د فعل او انفعال مبدأ بلل کېږي او په هغه سره کثرت په وحدت انتها مومي. څرنګه چې حقیقت یو واحد جز نسو تصور ولای او دا چې وحدت څرنګه د کثرت په صورت منبع ته راځي، نه یې پوهېږو او عقل د هغه له فهمه عاجز دی او د هغه هم نظر و عقل ته په ذوق درک کوو.

لتسه هغه کامل اصل متشخص ګڼي او مطلق شخصیت یې بولي او د نورو اشخاصو شخصیت یوه ناقصه او ضعیفه پلوشه د هغه شخصیت ده چې په محدودو وجودونو کې واقع سوې ده.

پیغله کریمه (فیض زاده)

# د حسن دوران

چې دې پوره ته کې لمحه محه اوقات
هغه دم دې زمانه کې مست خراب
چې نظر مې ستا پر سپین او ښکلي مخ سو
ماو لیدل ده خورلمعه د مهتاب
دا څه ستر ګې دي آهو رنګه جادو ګرې
که نرګس دا پاڅېدلی دی له خواب
کړې ورځې دې لیندې دي که تیغونه
چې بې دریغه کړي وارونه بې حساب
باڼو ګانو دې سل زړونه زخمي کړي
یو زه یم نور دې د برداسې بې تاب
سپین رخسار دې د زیب زینت کاندې لهورایه

که انجم دي چې ځلیږي یا آفتاب
توري زلفې دې پر مخ دې خپرې کړې
چې سنبل ورته خجل دی لاجواب
سره یاقوت دي په سرو شونډو کې دې ښه ښي
که سري وینې غورځېدلي که شراب
دا دې غاښ دي که دي دربه تار پېلي
که را کښلي دي صدف دي د دریاب
که هر څو دې مهرویان له ځنګه ښېښي
ستا ثاني به پیدا نه سي دا صحاب

سوز ګداز به پوره ته کې له زخمي زړه نه
که یودم له مخه پرې کړې حجاب
څه به وایم ستا له جوره نازاینه
تړ بوي مې قلم ویښي په دې باب
«کریمې» چې ستا د حسن دوران ولید
ده بې اوره ستا په هجر کړ کباب

## قسمت اوازل

زړه کیږه یوه په ټسې په اسرار د حقیقت
حیران دی ورته با ته شریعت او طریقت
او زلته په سر و میو جوړه جنت که و خپل ځان ته
ملنه څوک خبر دی په ازل او په قسمت



زلي چې تاو کې پر مخ یې بریږي
ښکلي ګولونه پر پاڼه څو کښېږدي
زړه مې بلبل سي ور باندې راسي
له ډېره شوقه ور باندې رېږدي

# خوندوري څلوریځې

افسونګري مې زړه یوړ په څه چال
خط یې دام و غوږوالي ، دانه خال
رنګینه یې دا برو قوس قزح وه
مست چشمان یې له هوسه مالامال



ګرزوي مین پسې انګار د رنجو داس
له پر یږدي شبنم د ګل پر مخ د آفتاب لاس
خوښ یمه په هجر کې تر وصل چې و پلیږم
په هجر کې آرام یمه د وصل تر وسواس



چې د زړه څه مې د آه پښه په هواسي
هغه دم پر فلک تور او ریځ داسي
دا تبخیر زماد وینو نه دي څه دي
د فلک پاړخو چې سور لګه حناسي

# د گلو باغ

هر چیری چې کښېنې هغه ځای د گلو باغ شي
چې ددومې په چمن کې د لاله سینه داغ داغ شي
چې باد يې توري زلفې په سپین مخ کا پریشانې
د مشکو د عنبرو بوی پریشان په هر دماغ شي

څه مامزه موندلې ستا د شونډو درو ا ځین یم
که دا مزه به هم موندله د میو په ایاغ شي
پیغام زما يې باده تر شیدا بلبلو دروده
لاشکـ چې په دا باغ کښې د گل بوی د گل سراغ شي

بودم د خوار خوشحال سره ته هم فارغه کښېنه
چې زړه مې لړه دی د پروانه ښه نو څه فراغ شي
(خوشحال خان)

## هنــــر او ادب

ژولوونکی (پنهان)

# ستر گی

ســتــر گــی دی د پــری انری دی
چې لې کړې تودی روغ سړی د لګو رو ینه
ستر گی دی بیا د گل غوټۍ کړې
با ژوډی پورته کړې چې وسپړی گلونه
ستر گــی دي ســري داوا دو لي
دا ملسري دي که دي د پرژه لي دينه
ســتر گــی د بــارچــی پکښــی نــه وی
که وطن ژوندی شي ستر گی وران دی شینه
ستر گی می سري د و پښو ژ کی
په کښې اغزي ستا د جفا ختلي دينه
ستر گی به و لی تازه نه وی
چې هر سهار په ما لګه خسل ورکومه
ستر گی دی روژه را ته گوره
په نشـ کا ته په دی غرلـ سر نه پکو ینه

# په میو مست

هسې مست یم ستا د شونډو په شراب
چې به نه وي بل دا هسې مست راب
لاس دا ستا په مینه اچوم و گل ته
لکه بوټي ته لاس اچوي غرقاب
دا سرخی او سپیدی ده ستا په مخ کې
که څما په مخ باران دی د سحاب
څه اثر به زما او ښکی په تا کاندې
لا تازه سی او رد به او ښکو د کباب
عاشقان دی ستر گی روڼې کا په عشق کښې
دا خواب نه دی منزل گاه ده د سیلاب
ما چې خال د استاد ورځو په میان ولید
نه بل هسې د لګی امام شته نه محراب

شا پیري چې لیدی نه شي، سبب دا دی
مخ د ستا له خمه نقابې په حجاب
چې صباح شي ستا تر مخ پوري شرمیږي
څکه زیست په توره شپه کاندې مهتاب
حجاب و اخله مخ کړه تور د هغو خلکو
چې تحسین کا ستا په دور د آفتاب
هسې نه چې زه دلبر و تا ته وایم
خدای دی تا لره در کړی دا خطاب
ستا د مخ په ورق باندې خط و خال دی
د مصحف په صحیفو باندې اعراب
ستا د حسن حساب هیڅ را څخه نه شي
هم به دا چې بې حساب دی بې حساب
بو کتاب په سپړ د بن کښې چا ونه کړ
بې رحمانه چې لې و کړ دا کتاب
(رحمان بابا)

### د باړ خو خولی

دا دی باد خوږ دی خوله ښولی
که لاله گل دی پر غوږ ځلي
دا دی سري شونډې که سپین غاښونه
که لعل او در دی سره پیولي



تهیه کوونکې : میرمن ملاله

# د تعلیم یافته نجونو مسئولیتونه

هر څوک د خپل موقف په اساس څېنې اجتماعي مسئولیتونه لري چې باید ځان په حقیقت کې مسئول و بولي زه به دې ځای کې څېنې مسئولیتونه د تعلیم یافته

نجونو یعنې پېغلو ته د خپلو همنوعو د حمایې په شکله د راجع کوم. او هیله کوم چې هغوی هم ځان مسئول و بولي.

څنګه د تاریخ په مختلفو وختو کې په مختلفو کړاونو اخته وه او د تاریخي سیر تر اوسه یې پوره طی کړې دي. او س هم داسې نه ده چې د ښځو د تکالیفو

څخه خلاصه ده. دا تکالیف چې هري خوا وي نو خپل همجنس یعنې پوهې پېغلې مکلفې دي د دوی حمایه وکړي او ت-
لو د مخه او ظیفه د دوی پر غاړه ده. دا ځکه چې د دوی

د عاطفې حس زیات بولم او هم د ځمیدلو او کړېدلو میرمنو پناه په دوی کې بولم مګر دلته چې زه یادونه کوم دا ظلمونه پر دوی د څېنو تعلیم یافته نجونو د خوا

کېږي.

تاسو به تعجب وکړئ چې څنګه دا مهربانه او با عاطفه موجود بیا هم د دوی ظلم مرتکب کېږي. دا په دې ډول چې دوی د هغو خلکو سره واده کوي چې هغه

درلو نکي د بلې ښځې وي. د دوی په دې اقدام نه یوازې دا چې د هغه د مخني ښځې ژوند تباه کېږي بلکه د هغو

د کوچنیانو سره او شت هم د خطر سره مخامخ کېږي ځکه هغه کوچنیان چې د پلار له محبت څخه محروم او ټوله ورځ د مور د سرو سترګو سره مخامخ وي.

تاسو فکر وکړئ چې د داسې ماشومانو څخه به څه ډول شخصیتونه جوړ شي. حتماً دا کوچنیان په ژوند کې ډېرې بدې عقدې اخلي او خپل ناوړه شخصیت ته تبارز

ور کوي او د ټولنې د فساد سبب ګرزي.

دا مسئولیت پوهو نجونو ته راجع دی چې باید د هغه کار مخنیوی وکړي. یعنې که فرضاً کومه یوه داسې

یوه عمل مرتکبه شي. باید نورې پېغلې هغه په خپل منځ کې ردې جرم په نسبت هغا کمه کړي. او دا د یوه لوی اجتماعي نقص مسئوله و بولي تر څو نورې ددې کار د کولو

څخه ځان وژغوري.

بې تعلیمه نجونې دا مسئولیت د پلرونو پر غاړه اچوي ځکه دوی د خپل آینده ژوند او ملګري په ټاکلو کې پوره واک او اختیار نه لري مګر تعلیم یافته پېغلې تر ډېرې اندازې د خپل راتلونکي ژوند د ټاکلو پوره واک او اختیار لري.

هیله لرم چې زما پورته تذکر شوې خبرې به بې تاثیره نه وي او د داسې همجنسو میرمنو د حمایې د پاره به نورې پوهې پېغلې په کلکه مبارزه وکړي. (میرمن ملاله)

ژباړونکی زمزمه

# په ټولنه کې د ښځې شخصیت

د ښځې وجود د ټولنې وجود بشپړوي. له دې امله دغو مثلاً ی چې دا ښکلي، مهربانه او شریف عنصر په ملي اجتماعي او جهاني خدماتو کې د سهم اخیستلو څخه بې برخې وي.

ښځه په ټولو حالاتو کې عیني وجایب او حقوق لري چې باید د هغو په اداینه او د هغو څخه په استفاده

کولو سره خپل شخصیت څرګند کړي. ښوونې د طبیعت دغه ښکلي مخلوق ته اړتیا لري او

د ښځې شور آفریني، نارینه تلاش او مبارزې ته اړ باسي.

د ښځې د مور والي افتخار او د

هغې د معنوي ارزښت ویاړنه، بالاخره د هغې د مهر او عاطفې خصلت چې د بشریت اولاد په خپل

غیږ کې پالي او روزي، یوه بله انګیزه ده چې د ښځې اهمیت لا پسې زیاتوي.

هیڅوک ادعا نشي کولای چې ښځه باید یوازې د کور چارې ترسره کړي. د ښځې په باب دغه ډول نظر

په واقعیت کې د هغې د آزاد شخصیت څخه انکار بلل کیږي.

انسان که نر وي که ښځه باید

د ټولنې د عمومي ارزښتونو په شرایطو پوه سي او د ژوندانه د ښکلو پدیدو په زده کړه خپلو

افکارو ته انکشاف ورکړي.

د انسانانو روحي او فکري وده د کور په احاطه او کوڅه والي کې نه میسره کیږي.

زموږ په عصر کې د ښځو ګډون په ټولو مترقي کې یو او ملي خدمتونو کې او د هغو رسیدل د دولتي مقاماتو عالي منصبو

ته ورځ په ورځ توسعه موندلې او د ملګرو ملتونو د بشر د حقوقو اعلامیې د ښځې ثابت موقعیت د نارینو په ډله کې روښانه کړی

دی.

په دې زمانه کې هغو ښځو چې لیاقت او اهلیت څرګند کړی دی تر لوی

چانسونه او عالي مقاماتونه ګټلي دي په تیره بیا په فرهنګي چارو کې.

ښځه د هغو کسانو په عقیده چې هغوی

مترقي فکر او عادلانه نظر لري علاوه پر هغه چې د ادکور رئیسه، د اولادو مور او د هغو مربي بولي د نارینه وو سره یې

د مساوي اجتماعي حقوقو او مسئولیت میړنی ګڼي. ښځه باید د هغو مشکلاتو حلولو ته ځان وکښېږدي چې په ټولنه کې

ورسره مخامخ کیږي او خپل ځان باید د کار او مسئولیت وړ بولي.

د انسان د ژوندانه د بنسټ بشپړولو

یو وي هغه مستقل شخصیت لرل دي. او دا کار تر هغه وخته نه میسره کیږي تر څو چې ښځې او نارینه د خپل طبیعت د مدني

حکم پر اساس د ټولنې سره سر و کار ولري. په وظایفو او تولیدي او اقتصادي عملیو په رشد او فرهنګي چارو کې خپل

نقش ترسره کړي په کشف او اختراع کې خپل فکر په کار واچوي.

په تولیدي چارو کې برخه

اخیستل موږ خپل شخصي اجتماعي او کلتوري مسئولیت ته متوجه کوي.

ښځه د نارینه په څیر د ټولنې د توجه وړ ده او ټولنه د هغې څخه د کار هیله لري شک نشته چې د کور

محیط هم د میړه او د وظایفو د اجرا ځای دی چې د کوچنیانو روزنه پخت و پز، ګنډل او د میړه د راحت

وسایل تهیه کوي مګر که د دوی استعداد په تولیدي امورو، تجارتي فرهنګي او هر فني چارو کې په

کار واچول سي هغه وخت نو د دغه انساني شخصیت څخه د زیات خدمت هیله کیدای سي.

د حیرانتیا خبره ده چې ښځې ژوند د دوو یا څلورو اولادو او میړه د ژوندانه د سرښتې د پاره

انحصار وي په دغسې مقید او محدود شرایطو کې د ادفکري رکود او بې علمي سره مخامخ کیږي

او د تفکر قدرت یې په وجود کې مړ چې دا وضع به خپله د اولادو په تربیه کې منفي اغیزه کوي.

«پاته په ۲۸مخ کې»

د ۱۳ مخ پاته

# انقلابي حرکت زموږ وروستۍ فیصله وه

د افغانستان د صناعتي بانک تاسیس د افغانستان د جمهوري حکومت د خوا د ۲۴۰ ملیونو افغانیو په تمویل سره عملي تائید شوه

د صناعتي پارک د لومړۍ مرحلې پروګرام د کډوالو اسانتیاوو د تامین په ګټه ونیول او ورکشاپونه او نور په سلو کې د ۶۰ نه زیات بشپړ شول.

د خصوصي پانګې اچولو قانون په هغه کې د ځینو نیمګړتیاوو د شته والي له امله بیا ترغور لاندې ونیول شو.

او په دې وختو کې د حکومت د خوا تصویب شو، هیله کېږي چې د پانګې اچولو په قانون او د ګمرک کې تعرفې په قانون کې په اساسي تعدیل سره د خصوصي پانګې اچولو د جلبولو د پاره مساعده فضا پیدا شي

دانرژۍ په برخه کې:

د پروګرام سره سم د ۳۳ زره کیلوواټه په ظرفیت د کجکي د اوبو د برېښنا د دستګاه د جوړولو کار دوام لري او په سلو کې د ۶۰ نه زیات د هغو کار بشپړ شوي دي.

د کابل د شمال لوېدیځ د برېښنا وچاري سټېشن د جوړولو پروګرام د ۲۲ زره کیلوواټه په ظرفیت د برېښنا د ۲۵ کیلومترو لین د غزولو سره یو ځای بشپړ شوي دي

د نغلو د څلورم توربین د ۲۲ زرو او ۵۰۰ کیلوواټه په ظرفیت بشپړولو د کار اخیستلو د پاره تیار شو.

د کجکي د انتقال د لین د پور موافقه په دې وختو کې لاسلیک او د هغې د کار د پیل د پاره زمینه برابره شوه.

## د کرنې په برخه کې

د جمهوري دولت د ټینګښت له لارې په اتکا د ځمکې د اصلاحاتو په برخه کې چې اصلي مقصد یې د ګران افغانستان د خلکو د اکثریت د ګټو تامین دی، بې ځمکو خلکو او کوچنیانو ته ځمکه ورویشل شوه. لکه چې د هغو ځمکو اندازه چې تر اوسه پورې ویشل شوې ده څه د پاسه ۵۰۰۰۰ کورنۍ احتوا کوي.

د جمهوریت او د چغګانې د ۲۶۳ په نامه فارمونه په ځای د پاسه ۳۰۰۰ هکتاره ځمکه کې جوړ شول د کروندګرو

د حمایې د زیات تشویق په غرض د بزګرو په ګټه د پنبې او چغندر د پېرودلو په بیه کې په سلو کې د ۱۹ په اندازه زیاتوالی

راغی د کروندګرو د هوساینې په غرض د کیمیاوي سرې د پور تحصیل وبخښل شو.

که څه هم په اوسني کال د انرژۍ او پولي بحران له امله د زراعتي تولیداتو او کیمیاوي سرې بیې د تصور نه پورته ډول لوړې شوې د هغو د سالمو لارو چارو د غوره کولو له امله نه یوازې د زراعتي او

صناعتي تولیداتو بیه په ثابت ول وساتل شوه بلکه د دولت د خوا د تولیدونکو او استهلاک کوونکو په ګټه مرسته وشوه. د زراعتي

تولیداتو د اندازې د لوړولو په غرض ۵۷ زره ټنه کیمیاوي سره وېشل شوې ده چې د ۱۳۵۱ کال

په نسبت په سلو کې د ۴۰ په شاوخوا کې زیاته ده. همدغه راز ۱۲۵ زره ټنه د اصلاح شوو غنمو د کرلو تخم

او د پنبې تخم وو وېشل شو په داسې حال کې چې په ۱۳۵۱ کال کې د هغې اندازه ۸۸ زره ټنه وه کمه وه.

په زراعتي بیلو بیلو برخو کې کروندګرو او زراعتي موسسو ته د زراعتي بانک د خوا د ٤،۱ ملیارده

افغانیو په شاوخوا کې پور ورکول شوی دی او د دغه پروګرام لاندې زراعتي ماشین آلات وېشل شوي

دي. په ۱۳۵۲ کال کې دوه ترنري د خدمتونو په برخه کې څه د پاسه یو ملیون څاروي وقایه او حمایه

شوي دي سربېره پر دې په دې برخه کې د تخنیکي پرسونل د برابرولو په غرض د کابل پوهنتون په چوکاټ

کې دوه ترنري پوهنځۍ جوړه شوه. په هرات کې د مالدارۍ د پراختیا د پروژې د کار لومړۍ مرحله پیل

او بشپړه شوه او د دې پروژې عملي کار به په لنډ وخت کې شروع شي. د ځنګلونو او څړځایونو

«۲۰ مخ»

په برخه کې نوري د ۲ ملیونو
هکتارو په اندازه ځمکه د حفاظوي
پروګرام لاندې ونیول شوه. په
کنړ، وردګ، پکتیا، بادغیس او
سمنګان کې د ۳۰۰۰۰ هکتاره سیمې
د پاره د هغې د ګټو اخستلو په غرض
منظم پلان تر لاس لاندې ونیول
شوی دی.

## د اوبو لګولو په برخه کې

د اوبو لګولو د سترو او
کوچنیو پروژو د جوړولو د کار
د چټکتیا سره یو ځای لکه پروان
هلمند، سردې او ننګرهار او د
غوربند ـ او بولګولو د پروژې
د جوړولو د کار پیل بدل او
نوري کوچنۍ پروژې تر مطالعې
لاندې او بو د منابعو د تثبیت په غرض
تحقیقاتي څېړنې او د ځمکې د منځ د
اوبو د سیستماتیکو څېړنو او د هیواد
په بېلو بېلو برخو کې هایډرولوجي
او جیولوجیکي څېړنې شوي دي.

د اجتماعي خدمتونو په برخه کې:
د پوهنې په برخه کې اساسي
مقصد د هیواد ټولو افرادو ته د
عرفاني اسانتیاوو برابرول دي
په ۱۳۵۲ کال کې د بې سوادۍ سره
د مبارزې ملي اداره د پوهنې
د وزارت په چوکاټ کې په بنه
تشکیل او پیاوړې ی مالي بنیه
ټینګه شوې ده او د دوی اوږدو
فعالیتونو په تطبیق سره د پکتیا،
جوزجان، ننګرهار او بغلان په
ولایتونو کې د ز ... د اوسط لیک

خلورو نورو پروژې تطبیق شوي دي.
د جمهوري نظام د روحیې سره سم
د پوهنې موظفې کمېټې د خوا د پوهنې په
هدفونو او پروګرامو کې لازم تعدیلات
شروع شوي دي د دغه اصل له مخې د لومړنیو
او ثانوي دورو د ۷۵ ټوله درسي کتابونه
چې تیراژ یې څلور ملیونو ټوکو ته رسیږي
بوشپړ یې د چاپ څخه وروسته په
ښوونځیو کې د تدریس د پاره تر استفادې
لاندې نیول شوي دي او د پاتې نورو
د چاپ د پاره یې کالکه هڅه کېږي د دغه
اصل د په نظر کې نیولو سره چې باید
د ثانوي تعلیماتو چټکتیا د لومړنیو
تعلیماتو د چټکتیا سره یو شان سي په
۱۳۵۲ کال کې ثانوي او منځنۍ نوي
ښوونځي له دې برا نستل سوي.
خوښه ده سره چې د اوسنیو تعلیمي
موسسو د ظرفیت څخه اعظمي استفاده
وسي د دغه اصل د مخې د دې دورې
د شاګردانو شمېر د ۱۴۷ زرو څخه په
۱۳۵۱ کال کې ۱۶۰ زرو ته لوړ سو،
د مسلکي تعلیماتو د شاګردانو شمېر
تقریباً ۱۰ زرو تنو څخه ۱۱ زرو تنو
ته زیات سو.
په ۱۳۵۲ کال کې د پوهنتون
د محصلینو ټول شمېر څه د پاسه ۷۰۰۰ تنو
ته ورسېد چې تقریباً په سلو کې ۶۰ ئې
د ساینس او په سلو کې ۴۰ نور یې د اجتماعي
چارو په څانګو کې وو پیل سول د ا تناسب
د ساینس او تخنیک په برخه کې د پر
زیاتوالي څرګندوي دي. د پوزیات
شمېر دوستو هیوادو او بین المللي موسسو
سره د علمي همکاریو د تو امیت تړونونه

نوي او یا تمدید شوي دي او
د خارجي علمي موسسو سره د علمي او
فرهنګي همکاریو په برخه کې
د پوهنې پراخ اقدامات تر لاس لاندې
نیول شوي دي.

## د صحي خدمتونو په برخه کې

بو شمېر روغتونونه او صحي
موسسې نوي پرانستل شوي دي.
د افغانستان د افغان روغتیا پرو-
ګرام چې اساسي مقصد ئې د طبي
پرسونل روزنه او په ټول هیواد کې
د معالجوي او وقایوي طب د
تسهیلاتو او وسایلو برابرول او
د طبي پرسونل روزنه ده چې زموږ
خلکو ته د عصري طب له فیضه څخه
د استفادې او ګټې اخستلو زمینه
برابروي.
د دغه کار د عملي کولو د بو
شمېر پیاوړې ی خارجي متخصصان
استخدام او افغاني پرسونل د
هغوی د معاونینو په توګه ټاکل سوي
دي چې د ټاکلې نېټې د پوره کېدو
وروسته د دغو متخصصانو ځای
ونیسي.
د مالي مشکلاتو سره سره د صحي خدمتو
او پراختیا د کلیو د خلکو په سلو کې
د ۸۵ تنو د پاره چې د ډاکټرانو او
درمل له لوري څخه محروم و په
نظر کې نیول سوي او ۲۷ صحي
مرکزونه یې نوي پرانستل سوي
او بو شمېر نور یې فعال کړه سوه
په کلیو کې د څښلو د صحي اوبو
برابرول د ساري ناروغیو مخنیوي

# انقلابی حرکت زموږ وروستی فیصله وه

بر ضد مجادله او د کورنۍ د منځه
وړلو دوام لري او د ساري او
ناوړې غذا د ناروغتیاو د پېښې
مخه کولو په غرض په علمي توګه
د داخلي او خارجي متخصصانو د خوا
یو لړ عملي څېړنې شروع سوې
دي. په څنګ یې د درمل باندې د غیر
ضروري تحملي درملو او بدلولو
زموږ خلکو ته د ګټور او اقتصادي
درمل د استفادې زمینه برابره
کړې او د افغان د روغتیا پروګرام
په چوکاټ کې د جنریک درمل
دور کولو په دوهمه او دریمه مرحله
کې به تابلیت او شربت جوړول او
په پای کې به امپول او دوا کسپن
جوړول د پاستور په علمي موسسه کې
تر لاس لاندې و نیول شي
د کلیو د پراختیا په برخه کې:

د افغانستان د جمهوري حکومت مقصد
د هغه د شروع د وخت څخه د هېواد
په کلیو کې د یو سالم او په زړه
پورې اقتصادي بنسټ ایښودل دي
چې په دغه ډول په ټول هېواد کې
ګټور اقتصادي او اجتماعي
فعالیتونه پراخ شي او د بشري
قواو او طبیعي منابعو څخه اعظمي
استفاده وشي.

## د کلتوري خدمتونو په برخه کې:

د جمهوري دولت د تګلارې
په اساس مطبوعاتو او کلتوري
فعالیتونه پراخ شول د دغه اصل له مخې
په لومړۍ مرحله کښې کلتوري پالیسي
او هدفونه جوړ او د تطبیق وړ سول.

د علمي موزیم مقدماتي سروې، په هرات
او غزني کې د دوو موزیمونو جوړول،
د هرات کندهار او بلخ د تاریخي ابداتو
ترمیم او نور، د بامیانو د تاریخي اثارو
د دوهمې مرحلې شروع د هغې کېندنې،
په هېوادوالیاتو کې د نوو کتابخانو
جوړول او د علمي ارشیف تاسیس د مطبوعاتي
نورو فعالیتونو سره یو ځای د دې
ساحې مهم فعالیتونه دي چې د دې فعالیتونو
یوه برخه بشپړه سوې او د تطبیق وړ ګرځېد
لې او ځینې یې تکاملي مرحلې تېروي.
د عدلي خدمتونو په برخه کې: هغه
مهم اقدامات چې سوي دي د تورنانو
د حالت څېړنه ده چې د خپل قضايي سرنوشت
په انتظار یې ډېره موده په بندي خانو کې
تېروله که چېرې د دغې څېړنې له امله زیات
شمېر بندیان د بنده خوشې کړه سول او د
بندیانو لسېتي دوسیې چې شمېر یې زیات
و قضايي جریان ته واچول سوې په پېلو
پیلو برخو کې د جرایمو د څېړنې په غرض
یو شمېر اختصاصي محکمې بیا تنظیم او
جوړې سوې دي.
د اسلامي او افغاني دودونو په پیروي په
محلي سویه د عدالت په اجرا او د حق په عملي
کولو کې د خلکو د برخې اخستلو په غرض
د سوالي جرګې جوړې سوې. په لنډ ډول
د دې برخې فعالیتونه هغه تدبیرونه دي
چې د خلکو د اختلافونو او دعوو ته
د رسېدو د اصولو او لارو چارو د چټک
کولو او د افغاني ټولنې د ژوندانه
د چارو د چټک او عادلانه حقوقي
تنظیم په غرض غوره سوي
دي.

## د مواصلاتو په برخه کې

په ۱۳۵۲ کال کې د ۶۲۵ کیلو
مترو په اندازه سړک جوړ سوی
او د ۴۶۵ کیلو مترو په اندازه قیر
پراچول سوي دي. د کابل ګردیز
د سړک جوړولو کار ټول بشپړ او
قیراچول یې په ډېره چټکتیا تر
تطبیق لاندې دي. د شبرغان میمنې
په سړک کې د جوړولو کار د
۲۶ کیلو مترو په اندازه او د
کندز قیش آباد سړک د ۱۹ کیلو مترو
په اوږدوالي پای ته رسېدلی دی
د لښکرګاه او دېشو د سړک د مفصلي
انجینري مقدماتي مراحل پیل
سوه. د حفظ او مراقبت تر پروګرام
لاندې سږکال څه د پاسه ۲۰۰۰
کیلو متره حفظ او مراقبت او
۱۳۰ کیلو متره اصلاح سول.
۲۸۴ پــا و تــمانـونه
۲۰ د کانونه او نوي نوي ډیپوډ
نادرشاه مینې په سیمه کې جوړ سول.
د قضايي ترانسپورت په برخه کې:
هڅه سوې ده چې د دې برخې فعالیتونه
په ټېره ګټور ډول د اړتیاوو
سیمو کې چټک او تنظیم شي.

۰ په ۱۳۵۲ کال کی د خواهان میدان د ۵۰۰ مترو په اوږدوالی تمدید شو او د بامیان د میدان د

منډی د کرښو داوږدولو پروګرام او د ترین کوټ د میدان پروګرام په سلو کی ۶۵ بشپړ شو

همدغه راز د خوست، فیض آباد تالقان او شغنان د میدانو د منډی د کرښو ترمیم شوی دی.

## د مخابراتو په برخه کی

په ۱۳۵۲ کال کی د انکشافی خدمتونو د پراختیا له نظره په دې

برخه کی د یادولو وړ پرمختګ نه دی شوی او علت یې د پروژو د خارجی لګښت د منابعو څخه په

استفاده کی ځنډول دی.

آریانا شرکت په ۱۳۵۲ کال کی څه د پاسه ۸۰ زره مسافر او ۳۶

زره کیلوګرامه مالونه انتقال کی یدی او افغانستان ته د سیلانیانو په وړولو او راوړولو کی یې

فعاله برخه اخیستی ده.

## د تجارت په برخه کی

د تجارت پالیسی او پروګرام

د تولیدوونکی او مستهلکینو د ملاتړ او د تجارت د وزارت د خوا د هیواد د صادراتی مالونو د

تولید د زیاتوالی په مقصد طرح او د حکومت د خوا تائید شول، د ۱۳۵۲ کال په ترڅ کی د افغانستان

د تجارت د تادیاتو بیلانس پوره

مساعد و.

او د ۱۳۵۱ کال په مقایسه

د تجارتی مالونو صادرات په سلو کی د ۱۴ په اندازه او واردات په سلو کی د تقریباً ۴ په اندازه

زیات شول. احصائیه او هغه تخصیصات چی د اقتصادی پلانونو د طرح په غرض اساسی نقش اری

د حکومت د پوره پاملرنی وړ وه، او په ۱۳۵۲ کال کی کوښښ وشو د افغانستان د احصائیی انسجام

پراخ او تامین شی د دغه اصل د مخه د احصائیوی څانګو مرکز ونه ټول د مرکزی احصائیی د ریاست په

چوکاټ کی توحید شول.

د مځکو د سروی او احصائیی د پروګرام په چوکاټ کی په ۱۳۵۲

کال کی څه د پاسه ۹۸ زره جریبه مځکه په اساسی ډول او څه د پاسه یو ملیون جریبه مځکه په اجمالی ډول سروی شوه.

د عامه امنیت د خدمتونو په ساحه کی د پولیسو او ژاندارم تشکیلات د دغه اصل د په نظر کې

نیولو سره چی د زمانی د مقتضیاتو جواب ورکوونکی وی او د خلکو د پاره یې په ګټور ډول لازمی

اسانتیاوی برابری کړی، پوره توی کښه پری وشوه. د پولیسو د تعلیمی سویې د لوړولو د پاره

په تعلیمی سیستم او د پولیسو اکاډمی په درسی پروګرامونو کی لازم بدلون راوستل شو

د پولیسو مسلکی عالی کورسونه او د غه راز په بهر کی هم د ځانونو د امنیه تومندانانو د پاره په بوطانو کی د سواد

د زده کړی کورسونه جوړ شول.

د ترفیع او تقاعد د پولیسو او ژاندارم د استخدام د قانون د رات د ترافیک قانون د جنائی آمر یتونو

د مقرراتو د پولیسو د تادیب د مقرراتو په شان نوی قوانین او مقررات وضع او تدوین شول.

د قاچاق د مخنیوی او د جرمونو د مخنیوی او کشف په برخه کی ګټور اقدامات وشوه. د سرحدی قانون د پولیسو

د مامورینو او د نورو په شان د پولیسو د ۱۱۲ نوو تاسیساتو جوړولو ته اجرا لاندی نیول شوی دی په مالی برخه کی

د جمهوریت د دوری د شروع په شپو ورځو کی د دولت د مالی ناوړه حالت سره سره د مالیی وزارت بریالی شو چی

مالی منابع د تحریک او د مالیاتو د عوایدو د راټولو او د سیستم د کیفیت د لوړولو په لاره کی ګټور ګامونه

واخلی.

د دغه مقصد د تحقق د پاره د ګمرکاتو قانون، د دولت تصدیو قانون ګمرکی، تعرفی، مالیاتی طرزالعملونه د مالیات پرعایداتو تعلیمات نامه او نوری لایحی وضع او تدوین شوی د مرکزی بانک او نورو بانکو د فعالیتو

په برخه کی د بانکی داری معاملاتو د ښه تنظیم د پاره د بانکونو د نوری قانون طرح او تدوین تر اجرا لاندی نیول شوی

او ژر به د دغه قانون مرحلی تیری او د تطبیق وړ وګرځی.

د بودجی نقش د هیواد د اقتصادی

او اجتماعی ژوندانه په تنظیم کی د یوی ګټوری آلی په حیث په ډول تر نظر لاندی ونیول شو او کوښښ وشو چی په

ګټور ډول د دغه آلی څخه د تیرو نیمګړتیاو

# انقلابي حرکت زموږ د روښتی فیصله وه

په لیري کولو او په آینده کې د فعالیتونو پر اختیا کې استفاده وشي.

د دغه اصل په اتکا د دولت عمومي بودجه په ۱۳۵۲ کال کې څه د پاسه ۱۰ ملیاردو افغانیو ته ورسېده په ۱۳۵۱ کال کې دغه اندازه نهو ملیاردو افغانیو څخه لږ کمه وه په ۱۳۵۳ کال کې د دولت عمومي بودجه د ۱۳۵۲ کال کې

د بودجې په مقایسه په سلو کې د ۱۱ نه ډېر زیاتوالی احتوا کوي په انکشافي پروګرامونو او عادي خدمتونو کې د دولت د لګښت د تمویل د پاره د منابعو پیدا کول

د داخلي مالي منابعو تحریک ایجابوه د دې له تیا د دغه د جمهوري دولت د تګ لارې په اساس د مستقیمو مالیاتو د اندازې په لوړولو کې کلکه پاملرنه وشوه.

د غیر ضروري عادي لګښت د تخصیصاتو او تادیاتو د مهار د پاره په ۱۳۵۲ کال کې د دولت په عادي لګښتي

بودجه کې څه ناڅه ۱۸۰ ملیونو افغانیو څخه زیاتې پیسې وسپمولی شوې. په دې ان کال کې هم زیار ایستل شوی دی چې د دایرو عادي منظور شوي تخصیصي د کال

په هره ربع کې د اضافي او غیر ضروري تخصیصاتو د مخنیوي په مقصد د پلان سره سم صادر او اجرا شي.

په دغه اصل باندې په اتکا سره په ۱۳۵۳ کال کې د دایرو د ټولو منظور شوي بودجې څخه د هغې څه ناڅه په سلو کې «۲۹» تخصیصي په اوله ربع کې اجرا شوي دي.

دغه راز د ۱۳۵۳ کال د پرمختیایي بودجې په حجم کې د ۱۳۵۲ کال په نسبت په سلو کې د ۱۰ په اندازه زیاتوالی

راغلی دی او په ۱۳۵۳ کال کې د تولیدي بودجې څخه څه ناڅه په سلو کې ۲۶ د هغې تخصیصي په اوله ربع کې صادري شوې دي.

د عادي احتیاطي پیسو اندازه چې د ۱۳۵۳ کال په

بودجه کې اټکل شوې ده د ۱۳۵۲ کال څخه په سلو کې ۲۲۸ په اندازه زیاته ده. په ۱۳۵۳ کال کې د جمهوري دولت د لومړنیو موادو د بیو د ټینګښت د هیواد د مرکز او

ولایاتو د مامورینو کار کوونکو او اجیرانو د کوپون د تفاوت د جبران او د پوځ د دولتي تصدیو د مالي حالت د ښه والي او نورو اهدافو سره د مرستې په مقصد څه د پاسه

یو زر او سل ملیونه افغانۍ تاوان منظور دي.

د ۱۳۵۱ کال په مقایسه په ۱۳۵۲ کال کې د مستقیمو د مالیاتو تحصیل په سلو کې څه د پاسه ۴۰

زیاتوالی ښیي.

د اداري اصلاحاتو او د مالیاتو د ټولولو د سیستم د کیفیت د لوړېدو په اثر د ۱۳۵۱ کال په نسبت د مالیاتو

په تحصیل کې (۵۰۰) ملیونه افغانۍ زیاتوالی راغلی دی دغه زیاتوالی د مستقل نرخ تعرفو له لوړېدو او د نوي مالیې له طرحه کولو پرته راغلی دی.

د ۱۳۵۱ کال په مقایسه په ۱۳۵۲ کال کې د نفتي موادو د ذخیرې په سلو کې د (۲۶۵) په اندازه غنم پنځه چنده او د بورې ذخیرې په سلو کې د (۱۴۹) په اندازه

زیاتې شوې چې دغه حالت د دغو موادو د بیو په ټینګښت کې اغیزمن رول لري.

د مامورینو کار کوونکو او اجیرانو د پاره د اسانتیاو

د برابرولو او د کوپراتیفونو د جوړولو د پاره د یو اساس د پیدا کولو په مقصد د ارزاقي موادو پوځېر مغازې پرانستل شوې او په راتلونکي وخت کې

په دغه مغازې د کوپراتیف په بڼه فعالیت وکړي.

په ۱۳۵۲ کال کې په مملکت کې په هره میاشت کې د افغانستان بانک د سپما په حسابونو کې د ۱۳۵۱ کال

د مقایسې د (۳۰۰) ملیونو افغانیو په اندازه زیاتوالی راغلی دی.

د پوهنې د پېروتو د پاره د پورو ورکړې او هغو

شیر نمل ژواک

# د فردي شعور د بدلون د پاره ادب خدمت کولای شي؟

موضوع ادبي ده. شروع شوه په اجتماعي رنگ. په دې برخه کې په مهلت را کئ.

ما ويل د فردي شعور د بدلون د پاره ادب خدمت کولای شي؟

د دې سوال لنډ جواب دا دی:

هو! مگر د مضمون د يو لنډې هرو خت تر متن په حاشيه خوښيږي په دغه مراعات په دوا يو ادب يا

خو اديب د ژوند د تحول او تغير د ميدان قهرمان وي ولې چې بريوه حال نه پاته شوی دی او به پاته شي.

اديب اجتماعي مخلوق دی د اجتماعي مادي او معنوي بدلون سره سم يو ځای عيار شوی او عيار يدلای هم شي. خو دا چې کوم عامل ده پر ذهني بدلون لويه اغيزه لري دا ته جواب دوې خواوې لري

هغه دا چې يو څو له وايي:

«کمي تغير پر کيفي تغير د مخه دی.»

بله ډله بيا عکس حکم لري. خير اديب هم په يوه ډله کې يا د بلې ډلې وي. خو دا چې اديب هم تر کمي او کيفي اغيزې لاندې وي او ولې خو دا خبره په هم

نه هيرو چې فردي خوښتنې او اجتماعي خوښتنې دا اديب د ذهن پر لوړوالي او ټوله اثر لري.

که دا حکم و منو نو بايد ووايو چې اديب ځان د ټولنې لوړې خواته بيولای شي يا دا چې دې خپله ټولنه د ځان سره لوړې خواته ملت او ملکري کولای شي.

لوړ او ټوله يعنې څه؟

د لته زما نظر د لوړې څه اجتماعي شعور دی چې ټولنه يې غواړي او ټوله يې غواړي او ايکمرغه لا هم. ټوله يعنې دا چې ځان غواړي، د ځان نيکمرغي غواړي کاڅه هم ده ده ټولنه يا د ټولنې افراد ده ده خوښي غواړي هم.

دا دې زما مطلب د لوړ او ټوله په حکم کې.

په ما او ويل: ادب د فردي شعور په بدلون کې سهم لري که په...؟

دا دی او س وايم چې: هو!

د اديب او ادب پر خه په دې برخه کې پر ده څکه اديب او ادب د ژوند د تحول او تغير څخه بې نيازه نه دي. ادب يو مترقي پديده ده.

د جامعې په منځ کې لوی اغيزې بدلينه ده ژوندا: بدلون د ټولنې سره دی او د ټولنې د بدلون، تحول تغير او حقی ار تقا سره. په دې لحاظ موږ بايد ادب ته په يوه غير متحرک نظر و نه گورو.

ادب او د ادب تيوري د کلاسي-سيزم څخه تر ريالزم پورې تاريخ دی. د ا تاريخ د ادب يا اديب سره

تعلق لري په دې لحاظ موږ او سني مرحله بايد موږ دا و بولو چې ادب د فردي شعور مرحله بايد په اجتماعي مرحلې سره بدله کړي.

ادب، ان اديب ته څه امر کوي؟

دا سوال دا سې دی چې د يو ې اديب اقتراح په حيث د ادب خوښونکو ته وړاندې کړو او وگورو چې

د لوی مترقي جمهوري نظام اديبان په دې برخه کې د څه ډول ابتکار لوري ته درومي.

زما د دې کوچنۍ مقالې مطالب يو وه. اقتراح کوو چې ځوانه ډله د ځوانۍ توان پر

وازمويي.

ادب د فردي شعور څخه د اجتماعي شعور لوري ته څه ډول را وبولو؟

نه يو هيږم چې په دې لار کې به دا زوړ-پيغله پری څوک ترلکې او نيسي او څوک به يې د سمولار و پر خوا د ځوانۍ په قرت د روغو مغز و په توان د دې لوړې پړ او خوا ته بوزي. (پاته په ۲۷ مخ کې)

(د۲۵مخ پاته)

# انقلابي حرکت زموږ د روستې فیصله وه

کې د پرمختیا ای پروژو تطبیق په چې د یوه پاړه بوړي اقتصادي بس منظر مهم توګه ده دي په

راتلونکي وخت کښې د افغانستان د هېواد خلکو په ګټه زور اقتصادي تحولات ممکن کړي. د هېواد دا او اوخاوري له منابعو څخه پراخ استفادي چې د افغانستان د جمهوري حکومت پوره پام ور ته اوښتي دي د هیواد په اقتصادي ساحه کې پراخ تحول راولي او په ځ، کم راتلونکو لسو کلونو کې څه د پاسه یو ملیون جریبه مځکې اوبه خوړ، اوزرګونو تنو د استخدام امکان پیداکوي.

ددغو هدفو او په تحقق کې دد وستودولتونو او بین المللي موسسو مالي مرسته زښت زیات رول لري د شوروی اتحاد دوست

هیواد مرستې په پېره پیاوړې بیاددغه هیواد دیوه دورکړ ي د لولو او د طبیعي ګاز د پېي دزیاتوالي په برخه کې د پرمختیا او د اقتصادي

زیات جلب قدرت دزیاتوالي په مقصد زیاتو کورنیو منابعو د تشکل سبب شي.

ګران وطنوال با یدو پوهیږي چې د یوه ولس له کار، زیار څخه تیر په دوا پشار، او فدا کاري پرته هیڅ پرمختګ نشي کیدای او هغه

پرمختګ چې د یوه ولس د خلکو له فدا کاري څخه نه دي پیداشوي په وروستي ډول کې پاڼه بوړي نه دي.

د افغانستان جمهوري حکومت په د هیواد د خلکو د اکثریت دژوند اله دښه والي په مقصد په لوا اقتصادي شتو لو کې بنیادي تحولات عملي کړي او پوره امیدلرو چې د دغه مقصد په ترسره کیدو کې به د افغانستان د فداکارو خلکو دزړه له کومې همکاري زښت زیات اساسي رول ولري.

یوې روښانه او نیکمرغه آینده ته په پوره ایمان زموږ هیله داده چې د افغانستان د جمهوري لوالاندي په نودي راتلونکي وخت کې مثبت اقتصادي او اجتماعي تحولات دوبنیاو بدې ترتیب د افغانستان د جمهوریت دجوړیدو راتلونکي جشنونه لا پسې وغوړیږي.

«ومن الله توفیق»

**ژوندی دې وی افغانستان**

**تل دې وی جمهوریت**

(د۲۶مخ پاته)

# دفردي شعور د بدلون...

توقع ده، لیازی دی، د یوه سپین د پری ادیب په حیث. یقین لرم چې ځوان فکر او ځوان توان د تحول او تغییر او ارتقاقونو لري دا زوړ په دغو مفروکې نیم تو ځکه په دبې د بدلو ګوتردوی ته د ادب په لحاظ داوړی لوری اشاره کوم دوی ددې ارتقا تې دي اود کمال لیوال ـ دا یقین زما تلو سه ژوندی ساتي.

ادب په خپل قوت با خپله خوږه پیرا یه په خپلو رنګینو الفاظو د ټولنې په دعوت کې ښه اغیزه لري دا اغیزه باید واته سپمول شي.

یاراواوقلم د چلو لواشنا یا نو! په دی خوپوهیږي چې د فلاحتي، صنعتي، تجارتي بدلون سره کلتوری بدلون ملګری کیدلای شي.

دادی په دي لارکي د بدلون هیله دقام دخپلو څخه کیږي.

بو هیږم چې منل کیږي د ستاسو دلیکلو او منلو په انتظار.

# دکامیابۍ راز

که غوا ړی چې کامیاب شي هیڅ مه ویرېږی او تل په ځان اعتماد ولری.

دکامیابۍ خو نه د زحمت په ایستلو زیاتیږي.

کامیاب هغه څوک دی چې وسوسه ته کوی اودوره ځینو کارو او په اجرا کې ځنډ نه راولی. کامیابی هغه وخت لاس ته راتلای شي چې په ځان کی د کلک عزم حس داسې ورو زوچې هیڅ ناکامی وجود نه اری.

# په زړه پورې لارښوونې

څوک چې خپل راز پټ ساتي، سلامتي یې په واک کښې وي.



(د ۱۹۵ مخ پاته)

## په ټولنه کې د ښځې...

اجتماعي پیوندونه او د خلکو منځ ته وړل او خلیدل د انسان فکر تحریکوي او د علم او معرفت کسبولو ته یې سوقوي او د مدنیت او ثقافت څخه یې برخوردار کوي ځکه او ښځې هم د غو امتیازاتو ته ضرورت لري.

په اوسني حال کې زموږ په هیواد کې د ښځو د روحي او فکري رشد د پاره تر ممکنې اندازې شرایط او امکانات برابر سوي دي او جمهوري مترقي دولت د ټولنې ټول غړي بې له توپیر او تبعیض څخه د هیواد په جوړولو او آبادولو او پرمختګ کې سهیم کړي دا نو اوس پر موږ دي چې د دغو مساعدو شرایطو او امکاناتو څخه استفاده وکړو او د هیواد د علاقې د آینده کې او د جمهوري نظام په تابناکه دوره کې په فعاله او صادقانه توګه خپل فکر او قدرت په کار واچوو.

صداقت یو داسې تور دی چې په هیڅ وخت کښې نه ښکېږي او نه یې په هیڅ وخت کښې زنګ خوري.

د دنیا په باب کښې تر فوق او خلاصون شته.

(حضرت علی (رض))



د خلکو د پاره د پرستر کمال دا دی چې وظیفه د وظیفې د پاره سرته ورسوي.

(کانت)



(د ۱۴ مخ پاته)

## هنر...

ار نو فکر د طبیعتو د ایډیالوژیک نفوذ د پاره مساعد میدان دی په همدې سبب د کارګرانو معاصره مترقي طبقه داسې هنر غواړي چې پر انقلابي واقعیت غوښتنه (اجتماعي ریالسیم) تکیه وي او د ټولنې سره مرسته وکړي چې پخپلو هیوادو او د دردونو او پوهېږي د هغه علتونه او د رمل ودرمې او منځ ته لاره خلاصه کړي د هغه هنر خو دا بیل بیل ډولونه په پرکې نیسي او هیڅکله باید د هغه سمت ارتجاعي او د بهره کښي، خرافاتو انحطاط او فساد په خدمت کې نه وي.

دارن سړی په هیڅ وخت کښې نه شي بریالی کېدای.



نیکې او احساس کوی داسې ورځې به راشي چې موږ او تاسې به ښکته وشو او بو شی دی چې موږ او تاسې ته به په شهرا شي همدا نیکي ده چې موږ یې ننوځ وکړو.

(ویکتور هوګو)



یوازې ښوب او تفکر د خدای پرستانو او خدای یادونکو ارامي او هوسا ینه ده هغه څوک چه فکر ونه کړي او خبره وکړي داسې مثال لري لکه ښکاري چې بې هدفه ډزو کړي.

(منتسکو)

له دروغو څخه په هیڅ ځای کښې استفاده نه کیږي که بیا ځرک ور څخه مستفید شي تر یو وار زیات یې نه شي استعمالولای.

(ناپلیون بناپارت)



فاضل او پوه هغه څوک دی چې پوهیږي او لوالی اعرش چې روا کې په هغه شه پر هیږي.

(ارسطو)

د وجدان رضائیت یوازې د وظیفې په سرته رسولو حاصلیږي.

(اسمایلز)



«۲۸ مخ،»

ژباړونکی: علي محمد «رسولي»

# له تاریخ نه مخکې (ماقبل التاریخ) انسان

د کلو کلو راهیسې پر دغه موضوع باندې خبرې کیږي چې انسان څوک دی او څرنګه ئې په دې نړۍ کې پښه ایښې ده.

تر اوسه پورې پوهان په دې نه دي موفق شوي چې د پخوانیو انسانانو د فوسیلو له مخې دې پوښتنې ته صحیح جواب ورکړي.

سره د دې چې د علمي تحلیل، تجربو او مطالعو په واسطه تر یوې اندازې پورې د لومړنیو انسانانو اسرار معلوم شوي دي او اوس ورځ د نړۍ په ټولو ځایو کې نوي فوسیلونه کشف شوي دي چې د پخوانیو انسانانو د اسرارو څخه ئې پرده پورته کړې ده.

د تاریخ نه مخکې انسانانو د غاښو څیړنې نن ورځ پوهان دې نتیجې ته رسولي دي چې پخواني انسانان ځینې واښه خوړونکي او ځینې هم غوښې خوړونکي وه.

د پښو د هډوکو له مخې د بیالوژۍ پوهان دې نتیجې ته رسیدلي دي چې پخواني انسانان پر دوو پښو باندې تلل.

د جمجمې د حجم او اندازې له مخې معلومه شوې ده چې د تاریخ نه مخکې (قبل التاریخ) انسانان ډیر هوښیار او بافکره وه.

د دې پوښتنې جواب چې د پخوانیو انسانانو وجود او جسامت څرنګه و د هډو پیژندونکو سره دی.

د آب و هوا او ځمکې د بدلون جوړښت او میترولوژیکي شرایط په انسانانو کې منعکس دي.

پوهانو د لویو بیزوګانو د جوړښت په مطالعه سره د انسانانو اصلي موقعیت تثبیت کړی دی.

لکه څرنګه چې د انسانانو د وینو ګروپونه او کروموزومونه د بیزوګانو د وینو د ګروپونو او کروموزومونو سره مشابه دي انسانان له هر حیثه د بیزوګانو سره مشابه ښکاره کوي.

له تاریخ نه مخکې انسانان یا د بشر مستقیم نیکګان د نورو حیواناتو تر منځ له هرې نګاه په خطر کې وه ځکه نه ئې قوي منګولې درلودې او نه ئې تیره غاښونه او نه ئې وړیښن پوست درلود. د دې له امله لوی نسبت و نورو حیواناتو ته ئې د ژوند دوام لږ و. ځکه نو د بدني او فزیکي قوا او ضعف انسان دغه ته مجبور کړی و چې د خپل ژوند د دوام د پاره د تفکر د قوې څخه استفاده وکړي. څو کولای شي د خپل ذکاوت له برکته پر نورو موجوداتو حاکمیت ولري.

د بیالوژۍ «فوسیل پیژندنې» پوهان وائي چې لومړني انسانان په شرقي افریقا کې د (میوسن) په دوره کې منځ ته راغلي دي (پوره ۲۰ ملیونه کاله د مخه) په هغه وخت کې ډیرو لویو خطراتو لومړني انسان تهدید کاوه او هغو د نورو حیواناتو تر څنګ ژوند کاوه، د داسې وحشي حیواناتو سره لکه:

وحشي غواګان چې د کرګدن غوندې غټ جسامت ئې درلودی یا داسې چقالان چې د دریابي آس په شان بدنه ئې درلوده.

په هغه وخت کې هم انسانانو اجتماعي ګډ ژوند کاوه، ځکه په جسماني او فزیکي لحاظ تر نورو حیواناتو ضعیف وه. د هغوی غذا د وحشي درختو د میوو او برګو څخه عبارت او کله به ئې کوچني حیوانات هم ښکارول او د هغو د غوښو او پوست څخه به ئې استفاده کوله.

کله چې څرنګه چې لومړني انسانان هم واښه خوړونکي وه او د خپل

ژوند دوام دپاره مجبوره وه
چې په ساعتونو ساعتونو لکه غواوې
او پسونه واښه وخوري.

لومړني انسانان کرار کرار
وپوهېدل چې غوښينه غذا به
لږ حجم سره کولای سي چې تر ډېره
موده پوري د بدن ماده وساتي
او د دې کار لپاره ښکار لازم
دی. وروروسته ئې د ځان دپاره
وسايل جوړ او د لويو حيواناتو
د ښکار دپاره ئې ډله ايز
اقدامات شروع کړل.

د هيڅو نښانو او بلګو څخه
څرګندېږي چې لومړني انسانان
پر څلورو يعني پر لاسو او پښو
تلل او د وحشي حيواناتو له ويرې
به ئې په ځنګلو کې د لويو درختو
پر څانګو باندې ژوند کاوه.

په زرو کالو وروسته انسانان
پر دوو پښو ودرېدلي دي او دا
طريقه ئې ځکه غوره کړل چې
د ولاړې په حالت کې ئې ښه تر ا-
کولای سوای ښکار ووينې او
يائې تعقيب کړي او يا دا چې
هيڅو خطرناکه حيواناتو ته متوجه
سي چې پر دوی حمله ونکړي.
او مړې وسله چې د لومړنيو
انسانانو د خوا اختراع سوه
د ګرکل د پوهنتون استادانو کتر
شادل ها کت ورو برت اثر
ليکي چې په ناڅاپي توګه اختراع
سوه هغه په دې توګه چې:
يو انسان د ډبرو د ټولولو په
وخت کې ناببره وليدل چې دده

پر خوا يو ببر راد وازدی او پر ده حمله
کوي، لومړنی انسان چې نه پوهېدی
څه وکړي ناڅاپه ئې يوه او په ډبره
يو ر ته کړه د ببر پر لور ئې ور وغورځوله
، هغه پر ببر ولګېدل او ببر پر ځمکه
ولوېدی. لومړني انسانان وپوهېدل
چې په دې وسيله سره کولای سي پر دښمن
بري ومومي.

د ډبرو کلو په موده کې بياهم انسانانو
د حيواناتو په رنګ ژوند کاوه. لومړنيو
انسانانو يوازې يو فرق د حيواناتو
سره درلودی او هغه دا چې د نر او ښځې
تمايل د هميشه دپاره ژاو جدا ګانه
ارتباطات ئې نه درلودل.

د پوهانو مطالعاتو د څوارلو وانا تو
خصوصاً د ماهيانو الوتونکو او تي
رودونکو په مورد کې ثابته کړې ده چې
دا حيوانات ټاکلې ځمکې د تغذيې دپاره
خپل مطلق ملکيت ګڼي. د تاريخ نه
مخکې انسانانو په باب ويل کيږي چې کله
چې به يوه ټاکلې سيمه کې د هغوي تعداد
زيات سو او نسل ئې ډېر سو نو د نورو
ځمکو د نيولو په لټه کې سول او نورې
ځمکې به ئې نيولې.

هغه فوسيلو نه چې د ماقبل التاريخ
انسانانو څخه پيدا سوي دي څرګندوي
چې هغوی په زرو زرو کيلو متره لارې
چين، جاوا او افريقا کې طی کړي ده
غوچې دوردخانو ته رسيدلي او هلته مېشته
شوي دي.

ماقبل التاريخ انسانانو هيڅکله
نسوای کولای چې څانو ته اور پيدا
او اسرا ئې ته ورسوي.

څرنګه چې ابتدائي انسانانو
د ښکار د حيواناتو څخه تغذيه کوله
ځکه ئې اوږدې او څښه تيرې
وسلې جوړولې چې د هغو څخه هم
ځيني په زړو مغارو کې کشف شوي
دي.

ابتدائي انسانان په ژبه
(لسان) هيڅ بلد نه وه او د ا نه ښي
حيواناتو په څېر ئې مخصوص اوا-
زونه د ستوني څخه را ايستل او په
دغو اوازو سره به ئې د غذا
موجوديت يا د خطر خبر يو د بله
سره انتقالاوه. دا صوتونه او اوازونه
صرف ځيني علايم وه چې يو د بله
به ئې رد و بدل کول.

په زرو زرو کلونو تير سول څو
چې د دې څونو او آوازونو
څخه د بشر د وروسته يو نسلو دپاره
ژبه جوړه سوه او مکالمه منځ ته
راغله.
لومړني انسانانو هيڅ لباس
نه اغوستی او لغړ ليږ ئې ژوند
کاوه. يوازې ئې لږ د وحشي
حيواناتو د پوستو څخه چې دوی
به ښکارول د ځان دپاره په ئې کالي
جوړول.

کله چې اور کشف سو د ماقبل
التاريخ انسانانو په ژوند کې
لوی انقلاب منځ ته راغی ځکه

اور حرارت او ګرمي تولېدول
او په عين حال کې دد ې سبب هم
«پاته د پښتو په دريم مخ کې»

# مړه بنفشه

هغه ګل چې وږمه يې لکه
سعادتخو شبۍ په مچې هوا ژمادوح
سرلوړی کاره، خپله خوشبويي
بايللې ده.

هغه ګل چې خپله تازګي يې
له تاهغه اخيستي ده اوستا پرمخ
خوړ بدلې ژ، خپل رنګ يې له
لاسه ورکړی دی.

هغه اوس يومې اوی او بې
روحه جسم دی چې زما پرسينه پروت
دی او په هغه زړه چې تر اوسه يې
لاخپل پخوانی تودوالی نه دی

بايللی، لوبي کوی او مسخره يي
بولي.

ژه دې مکر او ځکې مې له سې
کولای چې دا ګل تازه او شين کړی.

آه کاشکې خونور له سم کولای
چې هغه ورکه وږمه ور پيدا
کړم.

ددې ګل دغه ګنګ مقدرات
زما دژو له مقدراتو نه ور ته دی

چې ترا بده شکايت نه کوی او نه
خوا ځې چې وګې کړی.

«شيلی»

# تادئوش بوروسکی

تادئوش بوروسکی معاصر
پولنډی ليکوال په ۱۹۱۷ کال
کې زيږيدلی دی، کله چې درهمه
عمومي جګړه شروع شوه دی هغه
وخت جوونکی ژ.
هرڅنګه چې دی دملی نهضت
دمقاومت يوه پر فعال غړي ژ او
دنازيانو پر ضد يې بې ساری
فعاليتونه کول نو دنازيانو له خوا
ونيول شو او د «اوش ويتز» په
اردوګا کښې بندی شو.
وروسته تردی چې پولنډ
تا زيانو داسارت څخه خلاص

شو خپل سرګذشتونه يې ليکل او
نشرول چې ددی لاری څخه دی
مشهور ليکوال شو.

د تادئوش بوروسکی د
خصوصيا تو څخه دنازيانو
دارد وګا دمحيط په توصيف کښې
دده واقعبيني ده. دی هيڅکله
دنازيانو قربانيانو داخلاقي
انحرافاتو څخه ستر ګې نه
پټوی.

بوروسکی دامريکا په
معاصر وادبياتو کښې متخصص
دی دده دليکنې سبک مستقيم او
ساده دی.

«د ۳۰ مخ پاته»

# له تاريخ نه مخکې...

کيدی چې وحشي حيوا نات هغې
وبيريږي او وتښتي.

پوهان ليکي چې: اوزماقبل التاريخ

انسانانو کوم چې په مغارو کې ژوند
کاوه کشف کړی دی.

هغه ايری کومې چې دچپن په
پخوانيو مغاروکې کشف سوې دي
ثابتوی چې اوز ۳٦۰ زره کاله دمخه
کشف سوی دی او وروسته بيا دانسانانو

زراعت اوکرهڼې ته شروع سو.
ويل کيږي چې فقط لس زره کاله
کيږي چې کښت او زراعت دانسانانو

په واسطه په نړی کې شروع شويدی. په
زروزرو کلونو تيرسوه څوچې وروسته
انسانان په دې وپوهيدل چې دخپو څخه

بايد دهان اپاره کوډونه جوړ کي.
پس لکه هرڅنګه چې ويني هغه انسانان
کوم چې شپږ زره کلونه دمخه څخه معلومات

لرود يوه داسې نسل څخه منځ ته راغلي
دی چې احتمالاً ۲۰ مليونه کاله قدامت
لري.

يخنی خبري
له ايمان نه وروسته لوی نعمت نيکه
ښځه ده.



دری شيان دمينې زياتولو وسيلې دی
اول سلام کول، دوهم په مجلس کښې
نوروخلکو ته ځای پريښودل او دريم
مخاطب په ښه نوم يادول.





آئینه مصحف یو پښتني دود دی چې د کندهار په‌ار د نوکې رواج لري دا خوندوره صحنه
د کندهار ځوان هنرمند ښاغلي آپ، ن په پوره ښه ډول ترسیم کړې ده

د کندهار دولتي مطبعه